**نوي زعيم سره سرتاسري بيعتونو ، له اسلام اوجهاد سره دافغان ولس**
**خلوص اوتعهد یوځل بیا په اثبات ورساوه**

# څرک


دوولسم کال، پنځمه، پرلپسې ۸۹ یمه ګڼه
زمری ۱۳۹۴ل، ذوالقعده ۱۴۳۶هق، اګست ۲۰۱۵م


**په پيژندپاڼو (تذکرو) کې داسلام او افغان دکلمو حذف !!**

**ستا! په دې وياړلو کارنامو تاريخ ځلاند اوسه !!**

داسلامي امارت نوميالی مشراودرهبري شورا غړی محترم مولوي عبدالکبير :

**مرحوم عاليقدر ملاصاحب، له قومي، سمتي اولساني تو پيرونو**
**پاک شخصيت اويوخواخوږی انسان وو**

شيخ القران والحديث مولوي محمد شريف حقاني :

**مرحوم امير المومنين درسی به تمام رهبران مسلمانان داد که باعزم وصبر متين**
**میتوان کفار را ولوکه ازهر نوع امکانات مادی برخوردار باشند شکست داد**

**دملي وحدت دشيرازې نړول داستعمار وروستی هيله !!**

**مسلسلې فتحې څه وړاندې کوې !!!**






علمي ، فرهنګي ، ټولنيزه اسلامي خپرونه

دوولسم کال پنځمه، پرلپسې ۸۹ يمه ګڼه، زمرى ۱۳۹٤ل
ذوالقعده ١٤٣٦هق، اګست ٢٠١٥م

امتياز :

دا متيازخاوند : دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کميسيون

مسؤل مدير : عبيد تنوير

ليکوال پلاوى : ډاکټر صابر ، حميد ، جميل مېړنى او افضل محمد تراب

ګډون :

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ۱۸۰ افغانۍ |
| پاکستان : | ٢٤٠ کلدارې |
| امريکا : | ٦٠ ډالره |
| اروپا : | ٦٠ يورو |
| يوه ګڼه : | ١٥ افغانۍ<br>٢٥ کلدارې |

يادونه

حتمي نه ده چې په څرک کې خپرې شوې مقالې دادارې دپاليسي ترجماني وکړي هره ليکنه دليکوال خپل نظر دى.

تخنيکي چارې: تخنيکي څانګه



پتې :

کابل : د څرک دفتر srak_111@yahoo.com


# لړليک

بسم الله الرحمن الرحيم

سرمقاله



# نوي زعيم سره سرتاسري بيعتونو ، له اسلام او جهاد سره

## دافغان ولس خلوص اوتعهد يوځل بيا په اثبات ورساوه

دمرحوم عاليقدر اميرالمومنين ملامحمد عمر مجاهد ( رحمه الله) رحلت له شک پرته هغه ستره ضايعه اونه جبرانيدونکي مصيبت وو چې دخبر په اوريدو يې دريښتينو مسلمانانو زړونه قلم اومسلمانان په دې سوچ او فکر کې ولاړل چې دامت او افغانانو دنجات ددغه ستر داعي او فولادي چتر په نه شتون کې به اوس داسلام اوافغانيت غليمان دهغه په لاس دجوړشوي اواباد شوي (اسلامي امارت) دبنياد اواساس دنړولو لپاره څه ډول حربي او حملي په کار اچوي !!

نړيوال طاغوت اوملگرو يې خپل شوم عزايم اوکرغيړنې هڅې ډيرژر په کارواچولي دخپلو شيطاني لوډسپيکرو نوزهرجن تبليغات يې داسلامي امارت په خلاف پيل کړل ، ترڅو دمجاهدينو او عام افغان ولس اذهان مخدوش او اخلال کړي او دمسلمانانو دواحد صف دټوټه کيدو تشويشونه ورواچوي

خو دستر رب ( جل جلاله ) بې ساری انعام، مرحمت او دمرحوم عاليقدر ملا صاحب، خلوص اودپاک نيت اوعزم برکت وو چې دغليم او دوه مخو جهتونو دسيسي يې يوه يوه خنثی ، شنډې او له کاره وغورځولي، هماغه وو چې داسلامي امارت داهل حل عقد شورا ، رهبري مجلس او دهيواد دجيدو شيوخو او علمای کرامو له لوري ترهراړخيز بحث اوڅيړلو ورسته، محترم ملا اختر محمد منصور داسلامي امارت دنوي زعيم اولاربشود په توگه کوم چې هغه دمرحوم ملاصاحب په ژوند کې داسلامي امارت دنايب په توگه مهم مسؤليت ورله غاړي وو انتخاب او له افغان ولس او مسلمانانو يې وغوښتل چې له نوي امير سره خپل شرعي بيعتونه او وفاداری په ډاگه کړي.

داسلامي امارت دمشرتابه شورا غړو ، جهادي نوميالیو مشرانو، اداري اونظامي مسؤلينو ، او۳۴ ولايتونو په واليانو اومجاهدينو سربيره دهيواد په لراوبرکې اوهم دهجرت په ديار کې ، مجاهدوپرگنو ، علمای کرامو ، مشايخو اودبيلابيلو طبقو او اقشارو سره تعلق درلودونکو جهتونو او خلکو په ډير اخلاص او سپيڅلي جذبه دپراخو جلسو ، وفدونو او پيغامو نو په ترڅ کې له محترم ملااخترمحمدمنصور او دهغه له مرستيالانو ، هريو شيخ الحديث مولوي هيبت الله اخندازه او مولوي سراج الدين حقاني (خليفه صاحب) سره دزړه له تله بيعتونه اعلان اوڅرگند کړل.

له نوي زعامت سره دبيعتونو په اظهار، که له يوې خوا افغان مجاهد ولس خپل ديني رشادت او بصيرت په ډاگه کړ، داسلامي امارت دښمنانو ته يې دتل لپاره دا تاريخي درس هم ورکړ چې په دې حساس پړاو اونازکو شرايطو کې چې دوئ داسلامي امارت په ويشلو اودواحد صف په متفرق کيدلو ونتوانيدل، لدې ورسته خو دناصر رب ( جل جلاله) په فضل هيڅ ممکنه نده چې دهغوئ شومي هڅې او شيطاني دسايس به کومه نتيجه ولري.

باور لرو چې دنوي زعامت دمدبرانه تصاميمو او جهادي ستراتيژيو په اساس چې لا له اوس بريالی او له مهمو فتوحاتو سره مله ښکاري، افغانان به په ډيرو نيږدي مياشتو کې دسترو برياوو شاهد گرځي او له هيواده به داسلام اوافغانيت ددښمنانو پاتي سلطه خاتمه پيداکوي او جرړې به يې له بيخه ووزي. (ان شاالله تعالی)

مسلسلې فتحې

# څه وړاندې کوي!!!

خلیل - عزیز

دامریکایانو اټکل داوه چې دخپلوپاټوموخو دترلاسه کولولپاره به دخپل روزل شوي مفکر اودپخواني خونخواري ټلوالي په رامنځته کیدو وکولای شي، په افغانستان کې دامنیتي ترون په لاس لیک خپل اشغال تمدید اوپه هغه سربیره دژبي ، سمت، قوم اونورو متعصبو ناروپه توسط داشغال په مقابل کې دافغانانو دجهاد اوقرباني داعیه کمزوري او ویشلي وساتي ، څوک به داربکي ، څوک به دگلم جم ، څوک به دپخواني په اصطلاح مجاهد او یاروحاني درباري مشر۔ په نومونو وهڅوي ترڅو امریکایي گټې اوشتون له نابودی څخه وژغوري !!

خو دمتعال اوناصر رب (جل جلاله) مرسته اومدد وگوره چې دطاغوت دغه یوه یوه پروژه په ډیر لږ وخت کې رسوا، شرمنده اوله کاروغورځول شوه.

مفکر امریکایانو ته ډاډ ورکړی و چې په پښتنو کې به داربکیانو مستقیمه سراعلی قومنداني په مخ بیایي، ډبلیو عبدالله، دخپلوپخوانیو جنگسالارانوپه راژوندي کولوسره امریکایانو ته ژمنه ورکړي وه چې دهیواد تاجک میشتو سیموکې خوبه دطالب اودامریکاپه ضد دمخالفت جرړې باسي ، جنرال دوستم خو هسې هم دگلم جهانو پلار ځان باله ،چې که شوري اوډالر ورکړل شي ، مړه گلم جهان به بیرته په وحشت اوبربریت راولي اوڅه چې امریکایان غواړي همغسي به کوي ، محقق خیلو لاله وړاندې امریکااوغرب ته ثابته کړې چې دسرځارونه څه چې عیسویت منلو ته هم چمتو دي، خو چې چوکی او امریکایي مکافات پرې ونه دریږي.

په ابتدا کې دافغانیت او اسلام دغو ابدي او معلوم الحال څیرو دتبلیغاتو، غونډو، بهر ته په گړندیو دورو اوځینو داخلي تحرکاتو خپل بادار ته ورښکاره کړه چې انتخاب اوسرمایه گذاري یې هسې اوبې ځایه نده، بلکې هغه کارونو چې کرزي اوباند یې په ۱۴ کلونوکې نه و ترسره کړي، دوئ به یې په څو میاشتو کې کوي، ځکه اخر دنړې ددوهم مفکر ټاپه ، اودگلم جمی اوجنگسالاری تمغي په سینو باندې پرتې اوځړیدلې دي...

ولې دایمان اومیړانې په روحیه اوجذبه پوښلو لښکرو چې په مادي لحاظ اودوسلو او تجهیزاتو له مخي دکابل داجیرې اردو ، اربکایانو اوگلم جهانو په مقایسه لس فیصده هم جنگي اسانتیاوې اوامکانات نلري، الله تعالی په کمه موده کې په شمال ، جنوبي اونورو ولایتونو کې هغه پراخې سیمې، بې شمیره مستحکم بیزونو اولسگونه ولسوالۍ لاسته ورکړلې ، چې په تیرو

۱۴ کلونو کې يې مجاهدينو دهغو دنيولو تصور هم نه وو کړی.

دکندوز، بدخشان ، بغلان ، فارياب په ولايتونو کې له چټکو اومسلسلو فتحوورسته دهلمند دموسی کلا، تاريخي سوبه اوپه نورو ولايتونو کې ورځنيو جهادي لاسته راوړنو دکابل له امريکايي مفکرينو ، ګلمجانو اوجګړه مارانو څخه لار او ګودر ورکه کړه ، اعتماد اوباور يې خپل بادار ته په يوه پيسه وګرځيد، ولس دهريوه له نوم اوريدو څخه داستفراق حد ته ورسيد .

همدغه وجه وه چې عام افغان ولس دنجات او فلاح ديواځينی زريعي په ډول له طالبانو اومجاهدينو سره خپل اميدونه نور وتړل ، هغه افراد چې دکابل اداري په ليکو کې شامل شوی ، وي هڅول چې دطالب له مقابلې لاس په سرشي او هڅه دې وکړي چې خپلې پوستي ، مورچې او وسلې طالبانوته تسليم کړي.

دمعلوماتو له مخې په همدغې روحيی ، تنها په ورستيو ۲۴ ساعتونوکې دفارياب دقيصار مهم بازار اوورپورې تړلي ستراتيژيکي سيمي ، دپکتيکا ولايت په وازي خوا ولسوالی کې ۷ پوستي ، دپکتياپه پټان ولسوالی کې لويه فوځي قرارګاه اودخاص اروزګان په ولسوالی کې ۸ پوستي سره له هرډول وسلو او مهماتو دمجاهدينو لاسته ورغلي .

ډاډه يو چې الله تعالی په ګران هيواد کې دکفر اوشرارت رسوا مفکرين او نور خاينين دهمدغو روانو فتحو په تسلسل کې هغه انجام ته ډير ژر وررسوي لکه تردوئ مخکې يې چې ورسره مخ شول اواوس هغوئ دخپلوماتو اوشرمندګيو حکايتونو اودبادار ناکردی يوه يوه په لوړو محافلو او کنفرانسونوکې په لوړ کومي بيانوي او خلکو ته دا ذهنيت ورکوي چې دامريکايانوپه لاس امريکايی اشغال لوی حماقت او مرسته يې ستر خيانت دی.

# ترټولو هوښياراو بې عقل

منصور بن عمار رحمه الله د مشهور اموي خليفه عبد الملک بن مروان مجلس ته ورغی، خليفه د خبرو په ترڅ کې ورته وويل: منصوره! يو کال مخکې مې دا پوښتنه درنه کړې ده خو تر اوسه دې ځواب نه دی راکړی: په ټولو خلکو کې ډېر هوښيار او ډېر بې عقل څوک دی ! منصور ولاړ شو بهر ووت، لېږ وروسته بېرته راغی، خليفه ورته وويل: څنګه بيرته راغلې! منصور ورته وويل: امير المؤمنينه! تر ټولو هوښيار انسان هغه دی چې نېکي هم کوي او ويريږي هم، او ترټولو ناپوه انسان هغه دی چې بدي هم کوي او ډاډه هم وي.
اعقل الناس محسن خائف، و اجهل الناس مسيئ آمن : وايي د منصور په دې ځواب سره عبد الملک بن مروان دومره وژړل چې جامې يې هم په اوښکو لندې شوې.
سره له بد عمله سره له ګناه هم ډاډ او بې پروايي د مومن له پاره خطرناکه خبر ده، او د يوه اثر په رڼا کې دا د فاجر او منافق عادت بلل شوی دی، عبد الله بن مسعود رضي الله عنه وايي: مومن خپل ګناهونه داسي ويني لکه د غره لاندې چې ناست وي او ويريږي پرې راوبه لويږي، او فاجر خپلو ګناهونو ته داسي ګوري لکه يو مچ يې په پوزه تير شي او په لاس اشاره ورته وکړي.
عن ابن مسعود رضي الله عنه:إن المؤمن يرى ذنوبه كأنه قاعد تحت جبل يخاف أن يقع عليه، وإن الفاجر يرى ذنوبه كذباب مر على أنفه فقال به هكذا.
اخرجه البخاري



د بیعت اخیستلو په غونډه کې د اسلامي امارت د نوي زعیم

# امیرالمؤمنین ملا اختر محمد منصور حفظه الله

## د وینا بشپړ متن

اعوذ بالله من الشیطان الرجیم

بسم الله الرحمن الرحیم

نحمده ونصلي علی رسوله الکریم

وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللَّهِ جَمِيعًا وَلَا تَفَرَّقُوا ۚ

ټولو محترمو علماء کرامو او مجاهدینو ورونو .

السلام علیکم و رحمة الله و برکاته!

ټولو مشرانو او کشرانو ملګرو، سپین ږیرو علماء کرامو ته ستړې مه شې وایم.

تاسي ته خو د ډېرو خبروکولو ضرورت نه پیدا کېږي، ځکه تر موږ مخکې علماء کرامو او زموږ مشرانو تاسي ته ډېر بیانونه وکړل. ، خو بیا د دوی په اجازه بانديې یو څو خبري د تذکرې په توګه له تاسي سره شریکوم.

لکه دا آیت شریف چې ما تلاوت کړ، موږ و تاسو ټولو ته ارشاد ، اطمینان او یو هدایت دی، چې موږ پر دې آیت باندې عمل وکړو او پر دغه مسیر باندې خپل آینده ژوند ، خپله اجماع او خپل اتفاق وساتو. نو بیابه زموږ و ستاسو په کارو کې او زموږ و ستاسو په مشکلاتو کې الله تعالی راسره نصرت وکړي او په تفرق ، جلاوالي، بېلوالي او بې اتفاقي کې به اول الله پاک ډېر ناراضه شي او بیا به مو دښمنان ډېر خوشحاله شي او هم به مو په خپل منځ کې سر نه سره خلاصېږي او د نورو مشکلاتو سره به مو الله تعالی مخ کړي.

موږ او تاسو خو یوه هسته لرله ، د ټول مسلمه امت لپاره یوه هسته وه او بیا بالخصوص زموږ او ستاسو د ملک لپاره ، نو هغه خو د الله تعالی په کار وه او دا دی هغه مشر یې زموږ او ستاسو له سر څخه واخیست. الله پاک دې هغه ته جنت الفردوس ور په نصیب کړي او الله جل جلاله دې هغه ته هغسې مرتبې ورکړې، لکه شهداوو ته چې یې ورکوي.

نو اوس موږ او تاسو ته د هغه کارنامې او د هغه چې کوم کردار او موقف و او د هغه چې کوم سلوک و له خپلو مجاهدینو او نورو عامو مسلمانانو سره ، موږ او تاسي ته دې هم الله تعالی د هغه د طریقې توفیق راکړي چې و یې ساتو او مسیر مو هم پر هغې طریقه وي او هغه به زموږ او ستاسو لپاره یوه رهنمایي وي،د هغه اخلاق ، د هغه نیت او د هغه تقوا ، د هغه جرأئت او

د هغه عزم، دا به ډېره گرانه وي، چې د هغه دا ټولې ځانګړتیاوې به په موږ کې موجودېږي ، خو بیا به هم ټول دا کوښښ کوو، چې هغسې کردار وکړو او هغه تګلاره او موقف ټینګ ونیسو.د هغه موقف خو هم له ځانه څخه نه و، بلکې د الله جل جلاله او د هغه د رسول صلی الله علیه وسلم پر هدایاتو باندې یې عمل کړی و.نو دا زموږ و ستاسو لپاره کافي دي، چې موږ او تاسي به هم پر دغه لاره باندې خپل عزم، کردار ، کړه وړه او موقف دغسې جوړوو.

دا دروند بار چې اوس موږ او تاسو ته را پاته سو، دا ډېره گرانه خبره ده. ځکه دا نه د یوه سړي کار دی،نه د دوو، نه د درو دی؛ دا بار پورته کول او تر منزله پورې رسول هم سخت کار دی، نو په دې ټولو شیانو کې به موږ د الله جل جلاله څخه نصرت غواړو او د الله پاک مرسته به غواړو. همداشان په خپلو منځو کې اخلاص ته ضرورت ، اتفاق ته ضرورت دی. که موږ او تاسو سره متحد او متفق یوو ، نو دښمن به ناکامه وي او کامیابي به زموږ او تاسو او ټولو مسلمانانو په نصیب وي.

مرگ حق دی او هر چا ته مرگ راتلوونکی دی. دا لاره پر موږ او تاسو ودانه ده او دا کاروان روان دی. خو زموږ و ستاسو په تېر وخت او بیا په دې اوس موجوده وخت کې چې دا مسؤلیت زموږ او ستاسو پر اوږو را ولوید ؛ نو د ټولو بارونه درانه شول او مشکلات مو تر پخوا یو په دوه شول. پخوا چې یې هر څومره تکلیفونه پر ځان گاللي وو، یا یې قرباني ورکړې وې،اوس له هغه څخه دوه چنده او درې چنده زیات شول.

د دنیا کفارو او د هغو ملګرو پر دې ډېر کوښښ وکړ، چې په دې صف کې درز پیدا کړي او په دې صف کې بې اتفاقي پیدا کړي او یا دا د جهاد لارې کمزوري کړي،نو دا د الله تعالی نصرت و او نصرت دی، چې تر اوسه پورې نه د هغوی پیسو کار وکړ، نه د هغوی زور کار وکړ او نه د هغوی له لورې د هیوادوالو شهیدانولو ، زخمیانولو او د کورونو ورانولو دا اتفاق ختم کړ.

زموږ او ستاسو لپاره اوس دا په کار ده، چې د امیرالمؤمنین (رحمة الله تعالی علیه) په وخت(ژوند) کې چې کوم تشکیلات او ترتیب او یا کوم کار روان واوهغه ترتیب د هغه په هدایت جوړ سوی او معلوم سوي و، دا دی اوس هم هغه تګلاره ده ، چې د خرابېدو کوښښ یې ونشي- بلکې د جوړولو کوښښ یې وشي ، ترڅو دا د ټولو مسلمانانو لپاره د کامیابۍ یوه ذریعه وګرځي.

د ټولو مسلمانانو په تېره بیا زموږ د ولس همدغو خلکو ته ثمه ده. نور خلک خو ظاهراً موږ نه دي لیدلي ؛ نو دا خلک باید په دې کې ډېر کوښښ وکړي، چې دا موقف او دا چوکاټ وساتل شي. خوچې په هره منطقه کې یو څوک ووایي، چې دا مشکلات یوازې زما پر سر دي، دابه زه برداشتوم او زغمم به یې ؛ او که یو و بل ته یې سره منسوبوو؛ نو د مشکلاتو حل به نه راځي. دا مسؤلیت اوس موږ و تاسو ته را پاته سو، د هر یوه سره به د دې صف د متفق کېدا او یووالي سوچ او کوښښ وي او دا یې مسؤلیت دی. هر چا ته په خپل مرتبه کې ضرورت دی.

که څوک خپه ملګري وي، یا ناراضه ملګري وي، یا فرضاً لیرې وي یا څنګه وي یا څنګه ! د ټولو زړه ساتل په کار دي، د هغو د خوشحالۍ لپاره تکلیف او برداشت په کار دی او هغه له ځانه سره ملګري کول په کار دی او موږ و تاسو چې وایو او د خلکو هم را ته ثمه ده، چې د

خدای جل جلاله لار مو نیولې، نو زموږ دا ظاهر او باطن باید سره یو ډول وي، لکه څرنګه مو چې ظاهراً د ځان عنوان داسې جوړ کړی او شعار مو هم دا دی، چې اسلامي نظام راولو، په عمل کې یې باید ثابته کړو، دا ظاهري عنوان الله تعالی ته منظور نه دی او موږ تاسي موقت یو. یو څو ورځې به یو یا به نه یو،چې په اخلاص یې سره تیرې کړو او ټول ملګري په دې کار کې سره ملګري شو او تر هغه وخته به دا مبارزه روانه وي، چې په دې ملک کې اسلامي نظام نافذیږي.

دا ددښمن خبرې دي، چې دا د سولې پروسه ده، دا د مذاکراتو پروسه ده، دا پلانۍ پروسه ده..... د دښمن تبلیغات ډېر زیات دي، د پیسو، مطبوعاتو، رسنیو او د علماء سوء له لارې څخه یې ډېر کوښښ کړی، چې دا د جهاد سلسله کمزورې کړي او دا اتفاق له منځه یوسي،نو دې شیانو ته به نه ګورو او نه به د ادسولې خبرو او نورو شیانو ته غوږ نیسو.دا جهاد به تر هغه پورې جاري وي، چې ترڅو په ملک کې اعلاء کلمة الله او اسلامي نظام قایمیږي. شکر دی دا دی شل کاله ، بلکې دېرش پنځه دېرش کاله په دې جریان کې تیر شوي دي،نور به هم دا کوشش کوو چي په اخیرکي داخپلي لاس ته راوړني ، دا فتوحات چي رانز دې کیږي او دا کامیابي چي راځي له لاسه ورنکړو . دخلکو ګټې هم په دې کې دي چي کوششونه شروع کړي او خپل هدف ته ورسیږي نو موږ ټول به پر دې خپل کور، خپل صف او سنګر باندې پیره کوو. پریوبل به بدګماني نه کوو، کله هغه خبره او هغه کار دومرهنه وي، لکه څومره چې دا ملګري په خپل منځ کې سره بدګمانه شي. د بدګمانۍ او بې اتفاقۍ څخه به ځان ژغورو، زموږ و ستاسو مسیر د الله جل جلاله کلام او د رسول سنت دی، دا زموږ تګلاره ده او پر همدې باندې عمل کوو او تر وروستۍ سلګۍ پورې به مو همدغه موقف او دریځ وي . نو د خلکو خبرو او د نړۍ تبلیغاتو ته به غوږ نه نیسو. ان شاء الله

زموږ و ستاسو هسته یعني امیرالمؤمنین دا دی په حق ورسید،خو بیا هم شکر دی، دین خو له منځه نه دی تللی، ځوانان له منځه نه دي تللي، علماء او مشایخ له منځه نه دي تللي، مشران له منځه نه دي تللي، نو موږ به یو له بل سره ډېره همکاري کوو؛ ځکه ضرورت مو دی. برداشت به کوو، تحمل به کوو ، نو بیا ان شاء الله تعالی دا کار کامیابیدلای شي.که چېري هره اساسي پروسه را منځته کېدله، هغه به د شریعت سره سمه وي او د شریعت په رڼا کې به ټول اجراأت کېږي،هغه که په توره باندې جهاد و، که په خبرو باندې منزل ته رسېدل واو که په دعوت تر منزله رسېدل وي . د جهاد ټول کارونه به مو د شریعت په رڼا کې وي، موږ بل مسیر نه لرو، نه نورې لارې پکې ځایږي، نه دیموکراسي او نه داسي نور شیان پکې ځایږي، چې موږ دې تر دې منزله ورسوي، او موږ به په دې کې نهایي کوښښ کوو ان شاء الله او ټول به ملګري یو، سازش به نه وي، او په دې به مو یقین وي، چې یو طرفه فیصله به نه وي اوشخصي فیصله به نه وي، ځکه دا هر څه چې موږ کوو، دا دومره قربانۍ چې ورکوو،دا نه د ځان د څوکۍ لپاره ورکوو،او نه یې د مادیاتو لپاره ورکوواو پرهمدې موقف به مستحکم پاته کیږو.

دا خبرې چې کیږي او د مسلمانانو ترمنځ د بدمرغۍ تخمونه پاشل کېږي نو پر دې تحمل او صبر په کار دی ځیني ځایونو کې به سیمه ییز تفرق را پورته کېږي، یا به قومي خبرې کېږي، یا به لساني خبري کېږي، خو په هر عنوان چې وي، خلک (دښمن )د دې کوښښ کوي، چې

په دې نظام کې یو درز او جلاوالی پیدا شي او سره بېل شي. موږ و تاسو خو شکر دی علم لرو که علم نه لرو علماؤ سره خو اوسېږو ، کنه وي دا خبره خو هر چا ته رسیدلې ده، چې باید داسې خبرو ته ډېر غوږ ونه نیسو. که څه مو واوریدل ، باید د مافوقې او مسؤلې مرجع څخه پوښتنه وکړو، چې حقیقت لري که یې نه لري؛ نوکه یې حقیقت نه درلود او یا بې ځایه خبره وه، نو بیا خو هر سړی که ما فوق مقام که ماتحت مقام دید شریعت په رڼا کې تر لاس نیول کېږي او باید یو څوک یې تر لاس ونیسي . ،دهرمسؤلیت خاوند به پر خپله سلسله باندې ، د شریعت په رڼا کې تر لاس او گریوان نیول کېږي او د شریعت په رڼا کې به یې سزا او جرم معلومیږي؛ نه په خپلسري توگه. زموږ او ستاسو کارونه به ټول د شریعت په رڼا کې سرته رسیږي، که فرض کړو اوس یو اختلاف یا نور څه مشکلات پیښیږي نو دا دی آیت شریف موږ و تاسو ته رهنمايي کوي.

که په یو شي کې مو تنازع راغله او یا په یو شي کې مشکلات پیښ شول، نو د الله کلام ته به مراجعه کوو ، نو زموږ و ستاسو د اختلافاتو او مشکلاتو لپاره د حل لارې هم معلومې دي ، د اجراتو لارې هم معلومې دي او د سزا لار هم معلومه ده. که موږ و تاسو سره متحد یو نه دښمن اغېز کولای شي او نه یو بل منافق اغېز کولای شي او که زموږ و ستاسو په عزم کې سستي راځي او یا نور داسې خواهشات راسره موجود ول، نو بیا هر شی تاثیر را باندې کوي. دا زموږ و ستاسو یو مسؤلیت دی، دا بار دی ، دا پورته کېدل غواړي او تر منزله رسېدل غواړي. که چېرته چا ته یو مسؤلیت سپارل شوی وي او د یو کار په رأس کې راغلی وي، هغه د خپل مسؤلیت په دائره کې کوم غیر شرعي کار وکړي، نودا لار و هر چا ته خلاصه ده ، مراجعه کولای شي او تر لاس او گریوان یې نیولای شي. که چېرې په هر مقام کې داسې یو شی موجود و، زموږ و ستاسو مسیر معلوم دی.

زموږ له ټولو څخه دا خواهش او دا غوښتنه ده، چې خپل جهاد او خپل خدمت ته دوام ورکړو، هر څوک چې په خپله وظیفه کې دی، هغه به پر خپل مسیر باندې روان وي او خپل کار به کوي. نظام پر هغه حال دی او د دې کوښښ به کوي، چې کوم کمبودات په تشکیلاتو کې دي یا کومې نیمگړتیاوې په اداري چوکاټ کې وي، یا په رهبري کې دي یا په نورو داسې موضوعاتو کې وي، د هغو د اکمال او د هغود حل کوښښ او توجه وکړي.

ان شاء الله زموږ مشران او زموږ مسؤل کسان به همېشه دې ته متوجه وي، د حالاتو او شرایطو سره موافق د دښمنانو خبرو ته به غوږ نه نیسو او په خپلو منځو کې به ټول مسلمانان یو له بل سره معافي کوو ، زموږ خو ټولو ملگرو ته معافي ده او که په هر ځای او مجلس کې چا څه خبره کړې وي، نوزموږ عفو ده او د هغو څخه هم دا غوښتنه کوو، چې موږ ته هم معافي وکړي ، ځکه مؤمنان پر یو بل باندې حق لري، کیدای شي یو چا څخه خبره وشي یا بل وخت شوې وي، نو عفوه د هغې لویه جبیره ده او الله تعالی په دې ډېر خوشحاله کېږي . له تعصب څخه به ځان ساتو ،بیابه دا صف ساتل کېږي او الله تعالی به یې نصرت کوي، او که زموږ په خپل منځ کې اخلاص موجود نه وي، بدگمانۍ وي ، په یوه سړي کې دومره جرم او گناه نه وي لکه موږ چې دی دنیا او یا خلکو ته معرفي کوو، نودا زموږ و ستاسو خپل تاوان دی، الله به هم په دې را څخه ناخوښه شي او ملگري هم. .یو شی که واوریدل شو، باید پوښتنه یې وشي، فیصله باید مخکې ونه شي.

په جهادي تشکیلاتو کې دا دی فتوحات را روان دي. باید په خپل کار کې متوجه و اوسیږو. که سیاسي ملګري دي، که د دعوت ملګري دي، که دسنګرمجاهدین ملګري دي، دا ټول به په دې کې کوښښ کوي، چې په خپل ور سپارل شوي مسؤلیت کې به اخلاص کوي موږ او تاسو ټول سره ورونه یو، ټول مسلمانان یو اوزموږ او ستاسو موقف، هدف او کړه وړه ټول سره یو دي، ولې تفرق سره کوو، ولې بدګمانۍ سره کوو. سهي ده خپګان راځي، مشکلات راځي یو بل ته به لاس ورکوو، بیا به کامیابي راځي، که یو سړی ووایي، چې زما خبره او زما مقصد چې زه وایم باید هغسې وشي، نو بیا بې اتفاقي راځي او هدف ته نسو رسیدلای او دښمنان را ته په سنګر کې ناست دي. نو په داسې وخت کې زموږ و ستاسو لپاره اخلاص، تقوا او اطاعت په کار دی، او په کوم څه چې الله تعالی امر کړي یو باید هغه وکړو او چې د څه شي څخه یې منع کړي یو د هغه څخه به پرهیز کوو، نو بیا به موږ و تاسو کامیابېږو.

نهایي کوښښ به مو دا وي، چې رهنمایي به مو علماء کوي، پر خپلو مشرانو باندې به بد ګماني نه کوو، مشران به یې پر کشرانو باندې نه کوي، نو بیا به ان شاء الله دا کامیابي راځي او موږ به پر خپله عقیده او خپله قرباني باندې کامیابیږو. نوره کامیابي او ناکامي د الله له جانبه ده.

زموږ له ټولو ملګرو څخه دا خواهش او غوښتنه ده، چې په اوس او راتلونکي وخت کې به صبر او تحمل کوو، د اختلافاتو مخه به نیسو او جهاد ته به متوجه کیږو او ان شاء الله مطمئین اوسئ، څه مشکل به ان شاء الله نه راځي. موږ ته که څه سوال او یا په یوه خبره کې څه شک پیدا کېده، نو دا علماء کرام دي او مشران دي، له دوی څخه به هدایت اخلو او پر هغه باندې به عمل کوو، نور خو زموږ سره څه استعداد نشته له مجبورۍ څخه دغه دروند بار زموږ غاړې ته را ولویده. یقیناً د غو ملګرو زما څخه پوښتنه وکړه، چې دغه مسؤلیت ته تیار یې ؟ما ورته وویل، چې دغه مسؤلیت چې ما ته د امیرالمؤمنین له وفات څخه وروسته را سپارل شوی دی، لکه دا غر چې زما پر اوږو پروت وي، خو بیا اوس دا یو د خدمت وخت دی، د قربانۍ وخت دی، دا خو د یو پاچاهۍ وخت نه دی، دقربانۍ وخت دی ؛ نوځکه موقبول کړ بیا په دا اوسنیو شپو کې له ما څخه چا مخامخ پوښتنه وکړه، په ذهن کې به یې څه وو، چې ته څه وایې، ستا ذهنیت څه شی دی، دا مسؤلیت ته ته زړه ښه کوې او که یو بل فکر درسره شته؟ نو ما ورته وویل، چې موږ دا قربانۍ ورکړې، دا مشکلات مو وړي، دا ستړیا مو وړې، دا شل کاله په دې خدمت کې لګیاوو,ږیره مو نه وه، دا دی ږیره مو راغله او اوس داده سپینه شوه او نور هم دا دی پکې اخته یو . د خدمت شوق لرو او د مسؤلیت شوق نه لرو، دا چې مسؤلیت مو ما ته سپارلی، دا یو بار دی، زما پر اوږو باندې. که چېري له ما څخه مصلح او اهل کسان د دې غوښتنه وکړي، چې دغه مسؤلیت موږ یو بل چا ته پر اوږه ور اچوو زه به د دې حمد ووایم، چې دا بار زما له اوږو څخه واوړي او که چېري دا مسؤلیت بېرته ما ته وسپارل شي، نو بیا د الله تعالی څخه نصرت او د دې ملګرو او انډیوالانو ملګرتیا ته ضرروت دی، په یوازیتوب دا کار نه کېږي . دا شیان مهم دي، دا مسؤلیت به یو دوه ورځې وي . په دې چې د دې صف اتفاق او یووالی پر ما راځي، زه دې ته تیار یم، دغو ملګرو که ما ته هر خدمت را وسپاره هغه به زه کوم او د خدمت څخه

لاس نه اخلم اوچي مسئوليت مي ليږ شي زه به هوسا سم،ما دغو ملګرو ته وويل چي دا ما له خدای جل جلاله سره وعده کړې ده، د خولې وعده خو هر څوک کوي، خو چې په عمل کې څنګه ثابتيږي او د عمل جامه څنګه ور اغوستل کيږي، دا په خبرو باندې نه کيږي دا په عمل کې ثابتيږي . ما دغو ملګرو ته وويل، چې تاسو دغه نظام سره وسنجوئ ، که پر بل چا دغه نظام ښه روانيدلای شي او د دې صف اتحاد پرې راځي، نو الله شاهد دی، زه په دې خوشحاله کيږم او اهل کسانو ته بايد احترام و کړو او چې څه فيصله د ملګرو وي، بايد غاړه ورته کښېږدو . دا مسؤليت د پنځو ورځو شی دی؛ خو خدمت د همېشه لپاره دی او په هر چوکاټ کې چې وي. د الله تعالی رضا زموږ و ستاسو مطلوب ده. بيا هغه وو، چې د ملګرو تر ډېر زيات بحث وروسته ، زه نه يم ورغلی نو ما ورته وويل، چې تاسي او خپل انصاف ، چې څه فيصله تاسي وکړه زه به هغه ته حاضر يم، که احمد را غواړئ، که محمود را غواړئ. خو اهل کسان به وي، متدين کسان به وي، وفادار کسان به وي، مخلص کسان به وي، څکه په دې نظام مو خوا بديږي، تاسي خپله فيصله وکړئ، ما ورته وويل چې داسې فيصله وکړئ، چې الله پاک درڅخه راضي شي او کار روان شي.دا مو يو خواهش اوغوښته ده ، چې دا خدمت په اتفاق وشي ،نو پرون مازديګر او ماښام بيا ملګرو حال را وکړ بيا چې ورغلو نو دا مسؤليت يې زموږ غاړې ته را واچاوه او موږ ته يې وويل، چې دا کار به ته کوې. نو بيا مي ملګرو ته تر دعا وروسته دا خبره وکړه، چې دا کار يوازې زه نشم کولای دا به د ټولو په ملګرتيا کوو.

زه دا دوه درې خبرې درته کوم. آينده خو به نور هم کار روان وي او خدمت به کېږي ، الله به حاضر کړو، فيصله به کوو، د چا تر تاثير لاندې به يې نه کوو، په يو شخصي توافق باندې به يې نه کوو، هر وخت دا موقع نه برابريږي، علماء هم ناست ول او زموږ د شورا ټول مشران ملګري هم ، لکه دا اوس دلته چې ناست دي. ما ورته وويل، چې دا کار ډېر دروند دی، شيخ هيبت الله اخندزاده صاحب او د حاجي حقاني صاحب زوی خليفه صاحب مو د معاونينو په صفت معرفي کړل ، نو الله تعالی دې دوی ته اجرونه ورکړي، خپل عذر به يې ويلی وي، نو بيا زموږ ملګرو ټولو دا خوښه کړه او شورا دا تاييد کړل، ما ويل نور به ان شاء الله دا شورا څه پراخه شي، د خلکو مشکلات ډېر وي، زموږ مشکلات ډېر وي، د بصيرت لرونکي خلک، اهل خلک ، مجاهدين خلک او بنيادي خلک همدا دوی دي، چې د نظام په جوړولو به بحث کوي اوکه په نظام کې کوم نقص وي، هغه به مشخص کوي . دا بايد پراخه شي او دا کار بايد په آينده کې موږ او تاسي وکړو او يا په نورو تشکيلاتو کې چې کومې کمزورتياوې او يا کومې نيمګړتياوې وي، نو بايد شورا ورته متوجه وي. زه خو مخکې هم په دې کار اخته وم او يو مسؤليت دی، دا به مې مسؤليت وي، چې خلکو ته د کار زمينه برابره کړو، د مجاهدينو خدمت و کړو، موږ ته مسؤليت را سپارل شوی دی، پاچاهي نه ده را سپارل شوې، موږ ته قرباني را سپارل شوې ده، موږ ته خدمت را سپارل شوی دی، چې مسؤليت درنيږي، مشکلات يې هم درنيږي، موږ و تاسو په دې کې تجربه لرو، مجاهدين اکمال غواړي، د مجاهدينو په منځ کې څه مشکلات وي، که يو څوک د يو ولايت، يا يوې ولسوالۍ يا دلګۍ مسؤليت لري، نو د هغه مسؤليت دروند وي، نو زموږ و ستاسو مسؤليت هم دروند دی، هم هوسا کيږي او هم درنيږي، او د مسؤليت نور خارجي مشکلات هم شته، چې دنيا ورته متوجه کېږي. د الله تعالی څخه به نصرت



غواړو، چې الله تعالی په دې جامعه باندې فضل وکړي، یاالله ته رحم وکړي او ته یې کامیاب کړي.

موږ به دعا کوو، او په را سپارل شوې وظیفه کې به خلکو ته د کار، خـــدمت او نظـــام دجوړولو زمینه برابروو، هغه به په اتفاق برابروو، نور نو چې وفاداره او اهل کسان په هر بخش کي وي، ملګري دې یې را مخ ته کوي او په کار کې دې یې روانوي، زه چې دلته مسؤلیت لرم او یا دا چې خلکو ما ته دا بار را سپارلی دي، په دنیا کې دا دود وي، چې دا خو یو مسؤلیت دی، او مسؤلیت اعزاز دی، خو په اصل کې تکلیف دي، اعزاز خو هله وي، چې یو سړی یو خدمت یوې ثمرې ته ورسوي او نتیجه یې بیا الله تعالی اجرونه ورکوي، په دې زمانه ، په دې عقل او په دې فکر هغه شیان سړي ته ډېر ګران معلومیږي ، که د الله تعالی نصرت نه وي، نو هیڅ نه کیږي، عدل غواړي، انصاف غواړي، ښه اخلاق غواړي، حوصله غواړي، ګذشت غواړي، نو بیا هم د الله څخه نصرت غواړو او د ملګرو همکاري ته به ضرورت وي او همکاري به سره کوو، که چیري په دې کې موږ کوښښ ونه کړو او سر پرې ونه ګرځوو، نو دا کار خرابیږي او دنیا به راباندې خاندي، په دنیا کې به ذلیل شو، او د دنیا او آخرت له رسوایي سره به مخامخ شو.

نو د ټولو لپاره دا په کار ده، چې په راتلونکي کې تر خپلو نفسي خواهشاتو تېر شو، له تقاضاوو تیر شو، اطاعت ته متوجه شوپه دې باندې کامیابي راځي. دا اطاعت په خوله باندې ډېر اسانه دی او په اصل کې ډېر ګران دی، چې تر خپل اختیار او خپل موقف علاوه پر تا باندې امر وشي، د اطاعت ثواب په دې کې دی، چې سړی د خپل اختیار نه دی

په نااهلو کسانو باندې یې موږ نه ډېروو، تاسي په دې ملک کې ، هر ځای ته چې ستاسي رسیدګي کیدلای شي، پنځه نفره دې وي، لس نفره دې وي، ان شاء الله په دې کې به د الله نصرت وي، په نااهلو کسانو ، په بې تقوا کسانو او چې د جهاد سره مناسب نه وي یا یې کړه وړه داسې مناسب نه وي، غلاوې کوي ،دجهاد په نامه بې ګناه خلک وژنیاود جهاد په نامه او لس ځوروي نو موږ باید د دې خلکو مخنیوی وکړو او ولس ته ښه زیری ورکړو، له دې ولس څخه باید راضي واوسیږو، د دې ولس زړه باید د ځان کړو، د خلکو پر زړو باندې باید دا مشران او مجاهدین حکومت وکړي، او داسې نه وي، چې د خپل کبر او غرور او داسې کرداره سره خلک ناراضه کړي، چې هغه د ده په

ورکېدو خوشاله وي او د ده په واکمنۍ ناراضه وي، نومونږ ته په کار ده چې د شریعت په چوکاټ کې دخلکو زړونه وساتو که دا ولس نه وي، مونږ و تاسو کامیابي نسو ترلاسه کولای. د الله نصرت به شامل حال وي، خو اسباب غواړي.

د ولس سره ښه سلوک، د شریعت په چوکاټ کې خپل جهاد کول، د جهاد څخه ناوړه استفاده نه کول... ناحقه قتلونه، ناحقه مرگونه، ناحقه بند او نور وځخه ځان وساتئ. توکل پر خدای وکړئ، توکل محض به مو پر الله وي، نو به مو الله نصرت کوي . دا اوس چې د امارت له خوا یا ولایت یا یوې دلگۍ ته لس زره روپۍ یا پنځه زره روپۍ ورکول کېږي،دا خو دومره شی نه دی چې د مجاهدینو اکمال پرې وشي او ضرورتونه یې په رفع شي، په دې خو دا جهاد نه دی روان، بلکې دا د اتفاق برکت دی، چې مونږ او تاسي سره متحد یوو، دا د الله نصرت دی او د خلکو همکاري ده، د دې ولس همکاري ده او له دې ولس سره به مونږ ډېر ښه سلوک کوو، ډېر ښه کردار به ادا کوو. او د دښمن سره به په هغسې طریقه چلند کوو، لکه څرنگه چې شریعت را ته وایي، له شریعت څخه وتلی تجاوز یا له شریعت څخه وتلی چلند به نه کوو، چې څنگه زمونږ او ستاسي تحریک کامیابیدلای شي، په دعوت باندې، په هر نوع جهاد باندې، یعنې چې هدف ته پرې رسیږو،نو باید متوجه ورته و اوسو. هر سړی په خپل کار کې مسؤل دی باید یو د بل په کارونو کې مداخله ونه کړي، که یو وخت ناوخت مشکل پیښیږي، لایحه موجوده ده. لایحه د شریعت په رڼا کې جوړه شوې، نو هر چا ته خپل مسؤلیت معلوم دی، باید د هغه په چوکاټ کې وچلیږي، که په دې کې هر څوک په خپله لاره روان شي، نو ان شاء الله مشکلات به بیا کم او نه به وي. او که احیاناً چیري څه مشکل پېښ شي، نو هغه دی دحل مراجع یې معلوم دي، نو هر څه ته به یوه د حل لاره پیدا کیږي. پر محاکمو باندې باید ښه متوجه واوسیږو، پخپلو مسؤلیتو کې باید ښه متوجه و اوسو، که چیري مو دا قانون د خدای له قانون سره سم وي، نو کامیابي به راځي او که د الله د قانون سره موعمل، کردار او اجراأت برابر نه وي؛ نو صرف برای نام جهاد به وي، پر مخ به نه ځي او ناکامي به هم وي، په ډېرو پیسو که کامیابیدلای نو دا زمونږ و ستاسي مقابل دښمن به کامیاب شوی وای . زمونږ و ستاسو سره نه پیسې شته، نه زر شته، نه زور. نو دغه کتاب او د الله قانون په دې کې مو کامیابي ده؛ خو عزم غواړي، په دې لږ کار کې به الله تعالی برکت اچوي او ډېر فتوحات به راځي. زمونږ مشران به د دې کوښښ کوي چې مجاهدینو ته یو څه برابر کړي، که اقتصادي کمیسیون دی، که سیاسي کمیسیون دی، که نظامي کمیسیون دی، که بل کوم کمیسیون.

نور خو له مونږ سره داسې خبرې نشته، تاسي به مونږ ته دعاوې کوئ، مونږ به تاسو ته دعا کوو، نور به ان شاء الله په دې صف کې سره ملگري یو، ترڅو چې ژوندي یو او خپل خدمت به کوو، بیا که مونږ نه وو، نور به راځي . په خپل وخت به یې په ښه طریقه سره سرته رسوو، په ښه اخلاص او په ښه محبت به دا خپل کردار سره ادا کوو.

نور مو الله ته سپارم.

والسلام علیکم ورحمة الله و برکاته

خبیراحمد مجاهد

# دملي وحدت

## دشیرازي نړول داستعمار ورستۍ هیله!!

دامریکا دپخواني وحشي ولسمشر ډبیلو بوش مرستیال او دافغانستان اوعراق دلکونو مظلومو مسلمانانو قاتل (ډیک چیني) له فاکس نیوز سره په خپلې ورستۍ مرکي ویلي چې دعراق جګړه امریکاته ضروري وه ، ځکه نړۍ باید دصدام حسین له وجود اوشتون څخه پاکه شوي وای اوداچې دامریکا داشغال له ورځي تراوسه څومره عراقیان ، مړه ، شکنجه او دوینو ویالي هلته وبهیدي اویا عراق اوس عملا دتجزیي په څنډه ولاړ دی، ډیک وایی چې ددغو ټولوتباهیو او ناورینونو هیڅ پروا نکوي ، ځکه مهم کار دیوه مستقل او خپلواک عراق دهستي له منځه وړل ، دتیلوپه سرشاره زیرمو امریکایی سلطه او دعراق دملتونو ترمنځ دنفاق او بدبختیو زهرجنه کرونده وه، په هغوکې امریکا یان لاس بري شوي ، نورکه هرڅه عراق او ولس ته یې پیښ شول یا پیښېږي امریکا ،بوش ، ډیک چیني ته کوم اهمیت اورزښت نلري !!؟

امریکایانو همدغه لوبه او شیطانت په افغانستان کې هم دخپل عملي اشغال ترڅنګ روانه اوپلی وساته، داسلامي امارت دولس خوښې واکمني له نړولو او داسلامي شریعت په رڼا کې دحاکم او مثالي انصاف، عدالت او امن په له منځه وړلو اود لکو نو بې وزله افغانانو په قتل عام اوشکنو سربیره یې اوس په دې پسې کلکې مټې رابډ وهلي چې په کومه زریعه دواحد افغان ولس ترمنځ دپریکون ، تجزیی او تل پاتې دښمنی تخمونه وشنیدي.

امریکا چې دملي وحدت دحکومت ترشعار لاندي هغه خاینې څیري دکابل ارګ ته دننه اوهلته واکمني کړي چې ټول عمریې دافغانیت او اسلامي عقیدي په خلاف مبارزه کړي او دهمدغه کار لپاره کلونه کلونه دامریکا دملي امنیت په زیرخانو کې استخدام شوي اویا چې کله وخت راغلي نو بیا یې دامریکا دپلو عسکرو اوجواسیسو دنده سرته رسولي اوحتی په یومیلون ډالریې دافغانستان دخرڅلا و په معاملې هم صرفه ندي کړي، نو ددغسې اجیرو او بې ضمیرو واکمنو په وجود او انډو خرکې به اوس امریکا ارومرو دافغانستان دوروڼو ملتونو په مری چاړه راکاږي، دملي وحدت شیرازه به یې نړي ، دپښتون، تاجک ،

ازبک، ترکمن اونورو قومونو دبرتري اوکمتري متعصبي ناري اوشعارونه به راپورته کوي.

همدا اوس چې دهویت په پاڼه کې دافغان اواسلام کلمې دلیکلو او یا نه لیکلو کومه غوغا راپورته شوې، ددې ترشا لاس دهغه استعمار دخیل دی، چا چې اول دغه هیواد اشغال کړ او ۱۴ کاله یې دهغوی په حریم اوحرمت هرډول لوبې وکړې او بیا یې دامنیتي تړون په نامه ددې هیواد قباله پرې دستخط کړه.

اوس به امریکایان په تذکرې اوهویت پاڼه کې داسلام او افغان دکلمې په سر واحد افغان ملت عملي جدایی او تجزیی ته تړي، یابه یې له افغانیت څخه تیروي او یا داسلام له کلمې څخه چې په دواړو کې دامریکا اوداسلام ددښمنانو ګټه او همدغه ارزو یې یواځې اویواځې دکابل دملي وحدت! دفاسد رژیم په همدغو بې هویته واکمنو کې چې په اصل کې دملي وحدت دشیرازي نړونکي اوملي خاینین دي ښه پوره کیدونکي او ترسره کیدونکي دي.

خو له الله تعالی نه هیله لرو، چې نور په خپل فضل اورحم سره افغانان داسلام او افغانیت له همدغوقسم خوړولو غدارانو څخه خلاص اودسوچه اسلامي نظام په حاکمیت یې سترګي یخې اوزړونه یې ټکور وګرځوي آمین.

## عبرت تکي لري

یو سړی سهار له وخته له خوبه پاڅیده، اودس یې وکړ، پاک کالي یې واغوستل او د جومات په لور رهي شو، خو ناڅاپه سړی په لاره کې ولویده، کالي یې خیرن شول، خو سړی راپاڅیده کالي یې وسنډل بیرته کور ته رهي شو، بیا یی نور پاک کالي واغوستل او له سره یې اودس وکړ او بیا د جومات په لور رهي شو چې د سهار لمونځ وکړي، خو دا ځل بیا په لاره کې وغورځیده، بیا یې د تیر په شان کالي خیرن شول او کور ته لاړه له سره یې پاک کالې واغوستل، اودس یې وکړ او بیا د مسجد په لور رهي شو.

په دې وخت کې له یو سړي سره چې په لاس کې یې چراغ نیولي وو مخامخ شو، سړي ورته وویل چې ما ولیدلی، ته دوه ځلې په دې لاره کې وغورځیدلی، نو کوښښ مې وکړ چې چراغ درته راوړم او تا تر مسجده ورسوم.

لومړني سړي ترې مننه وکړه او له هغه سره تر مسجده پورې لاړه، خو لومړني سړي دا چراغ والا ته وویل چې وروره راځه دننه شه جومات ته لمونځ وکړو، خو چراغ والا سر ونه ګراوه، بیا یې ورته وویل چې ورورره جومات ته دننه شه چې لمونځ وکړو، خو سړي انکار وکړ، په کراتو کراتو یې ورته وویل خو هغه انکار وکړ، اخر لومړني سړي ترې پوښتنه وکړه، ولی نه راځې لمانځه ته!

خو چراغ والا ځواب ورکړ، زه شیطان یم، دا دوه ځلې ته ما وغورځولې، خو تا سستي ونکړه بیا دی هم د لمانځه لپاره ځان تیار کړ، کله چې ته په اول ځل وغورځیدی، او کور ته لاړی پاک کالي دی واغوستل او له سره دې اودس وکړ نو الله تعالي ستا ټول ګناهونه معاف کړل، په دوهم ځل چې کله بیا له غورځیدو وروسته تا کالي بدل کړل او له سره دی اودس وکړ، نو الله تعالی ستا د کورنۍ ټول ګناهونه معاف کړل، په دریم ځل وویریدم هسی نه چی بیا ولویږې، دا ځل به الله تعالي ستا له وجې د ټول کلي ګناهونه معاف کړي، نو ښه مې وګڼله چی تا تر مسجده پورې په ارامه ورسوم.



## داسلامي امارت نومیالی مشر
## او درهبري شورا غړی محترم مولوي عبدالکبیر :

**مرحوم عالیقدر ملاصاحب، له قومي، سمتي اولساني توپیرونو پاک شخصیت اوېوخواخوږی انسان وو.**

**داسلامي امارت نوی زعیم ، دمرحوم ملاصاحب دفکر اومسیرتمثیلونکی اوپه اوسني وخت کې دقیادت لپاره غوره کس دی.**

**پوښتنه:** محترم مولوي صاحب! دمعلوماتو له مخي مرحوم عالیقدر امیرالمومنین ملامحمد عمر مجاهد تاسې سره په خپل ژوند او داسلامي امارت دتیري واکمني په دورکې زیات محبت درلود په یو مهال یې ځو دندې درلغاړې کړي وي ، ددغه اعتماد رمز او علت څه وو ؟

**ځواب:** زما په ګمان مرحوم امیرالمؤمنین رحمه الله، په خپلو ملګرو اومسؤلینو نیک اوښه ګمان درلود، پرته له کوم قومي ، لساني او سمتي ترجیحاتو، دخپل لزومدید له مخي چې څومره به یې مناسب وبلل مسؤلیت یې یوچا ته ورسپاره اواعتماد به یې پرې کاوه ، ستاسي دپوښتني په ځواب کې باید ووایم چې مونږ ته هم ملا صاحب ، داسلام او هیواد دخدمت لپاره په تدریجي ډول مسؤلیتونه سپارلي وو ، مثلا کله چې له لوګر ولایت نه مو دمسؤلیت تبدیلي ننګرهار ته دخدمت لپاره وشو اوهلته ولاړو ، ړومبی مسؤلیت دننګرهار ولایت وو ، بیا دڅه مودي تیریدو ورسته دختیځ زون تنظیمه ریاست ، او بیا ورسته په یادو دو دندو سربیره په کابل کې دسرپرستي شورا مرستیالي وه

**پوښتنه :** داسلامي امارت دواکمنی په مهال مرحوم ملا صاحب زیاتره وخت په کندهار کې تیرکړ، ولایتونو اوپلازمیني کابل ته به یې دوري نکولي، دهیواد له حالاتو او جریاناتوپه خاص ډول دمسؤلینو له کړنو څخه به یې ځان څنګه خبراوه؟

**ځواب:** هو، محترم ملا صاحب که څه هم په کندهار کې اوسیده ، خو ترخپلې وسي یې له حالاتو اودمسؤلینو له کړنو اوکردار څخه ځان خبراوه ، ما یو مهال دیوه کس په امورو کې دعدم اطاعت خبره ورته وکړه ، ما فکر کاوه چې ملاصاحب به ترینه معلومات نلري ، خو ملاصاحب پرته له کوم ځنډ راته وویل چې دهمدغه کس داغه نقص اومخالفت ماته داسي معلوم دی لکه داسپین کاغذ چې زما مخ ته پروت دی.

همداراز ما یو ځل دیوې سابقه مشهوري څیرې په باب ورته وویل چې که په مناسب ځای اومقام کې راغلی وای، ملاصاحب په ځواب کې راته وویل چې دغه کس مشکلات لري، ماته حتی (غرب پلوه ) ډلې سړی معلومیږي ، ربښتیا هم چې ورسته ثابته شوه چې نوموړی کس دامریکا لاسپوڅی وخوت او دهغوی لپاره یې کار کاوه ، ما هغه کس دومره نه پیژاند.

**پوښتنه:** جناب مولوي صاحب، عاليقدر مرحوم اميرالمومنين تاسي له نيږدي پيژاند اوپه كراتو مراتو مو هغه له نيږدي ليدلى، دهيواد په سطحه مسايل به مو ورسره مطرح كړي وي، ايا هغه داهمو موضوعاتو اوريدو اوحل ته يې دلچسپي لرله، مثلا چې ولسي رنګ به يې درلود، دبيا ودانولو خبره به چې وه يادعامو خلكو دحقوقو او ستونزو مسايل ؟

**ځواب:** ملاصاحب ته به چې هره موضوع ذكر شوه بې اهميته به يې نه تيروله، خصوصا اهمومسائيلو ته به يې پوره اهميت وركاوه او قناعت به دركاوه، يوځل ما ديوې مهمي اقتصادى پروژې (كابل ـ جلال اباد، بيا سركان - لغمان او بيا جلال اباد – كنړ) دعمومي لاري داساسي جوړولو اوپخولو وړانديز وكړ، چې دمشرقي ولايتونو په حق العبور باندي داكار وشي، څرنګه چې دهر ولايت حق العبور په قانوني ډول به دخپل مستوفيت له لاري دهمغه ولايت بانكي امارتي حساب ته تلو اومونږ صلاحيت نه درلودو چې ديوه ولايت حق العبور په بل ولايت كي مصرف كړو اوله بل لوري ديوه ولايت حق العبور كافي نه وو چې دسرک جوړوني پروژه اولګښت پرې ترسره شي، زما فكر داوه چې ددريو ولايتو نو په حق العبور په تدريجي شكل دهر ولايت دغه ستونزه رفع شي.

زما ياديږي، دملاصاحب منشي، ملاعبدالسلام كاتب، زما په پورته وړانديز اوطرحى ملاحظه وويله، چې داطرحه اوږده ده يعني بل ولايت ته ژر نوبت نه ورزي، خو ملاصاحب فوراً ورته وويله چې احكام ورته وليكه همداسي سم دى، مونږ ته به څوک سركونه راجوړوي، همدغه طريقه هم غنيمت ده، چې كار روان شي.

دغه راز، ما په ننګرهار كې دحربي ښونځي، متوسطه طب، دشروع كولو وړانديز كړى وو، دحربي ښونځي منظوري يې راكړه اودمتوسطه طب موضوع يې دوزيرانو شوراته راجع كړه چې هغوى هم موافقه وكړه .

ستاسي دپوښتني دبل جز په ځواب كې بايد ووايم چې ملاصاحب دملكي خلكو په حقوقو چې حال به وروسيد جدي پوښتنه كوله، يو مهال په ننګرهار كي يوعام كس له مونږ سره اسير وو، اقارب يې ممكن دامارت مقام ته عارض شوي وي، ملاصاحب دمخابري له لاري ځان دهغه په ټول كيفيت اوحالت اګاه كړ، چې څه جرم يې دى، اوموضوع يې په كوم ځاى كې قرار لري.

**پوښتنه** : دمعلوماتو له مخې ملاصاحب به ډيركمي خبري كولي، كله به چې تاسو له هغه سره مجلس كاوه او هدايات به مو ترينه اخستل، هلته به يې هم خبري او دقناعت وركولو عادت اوټكي همداسي مختصر وو كه به يې دموضوعاتو جزياتو اوتفصيلاتو ته هم مخه كوله ؟

**ځواب:** يوځل زه او په هغه مهال دننګرهار ولايت مرستيال مولوي صدراعظم دواړه كندهار ته دځينو موضوعاتو دحل لپاره ملاصاحب ته ورغلي وو، دملاقات په جريان كي ملاصاحب په يوه موضوع كې زمونږ له توقع خلاف ډير تفصيلي ولاړ او هراړخيز بحث يې پكې وكړ، بيا يې ماته وويل چې زه دغسي- اوږد اوژور مجلس هغه چاته چې پرې پوهيږي كوم يې، چې دادي ملاصاحب، پرمونږ نيک ګمان اوشفقت وو، اوغالبا داخبره به يې هم په هغه مجلس كي راته كړي وي، چې ځيني خلک وايې زه اطاعت كوم، په داسې حال كې چې وزارت ورته حاصل وي، ښه موټر وركړل



شــوی وي ، خرچــه اواعاشــه پــوره ورزي اوهرڅه يې په طبعه برابروي ، بيا وايی چې زه اطاعت کوم ،مطلب داچې داطاعت دعوه به هلته صادقه شي چې دايـاد شـيان ورسره نـه وي!!!

**پوښـتنه:** سـتاسي پـه نظـر ملاصـاحب مرحـوم، لــه سـمتي اوژبنــي تعصـب او پلويتوب څخه څومره کرکه اونفـرت درلـود ، که لطفا په دې اړه لږ رڼا واچوي

**ځواب:** زما په نظر محـترم مرحـوم اميرالمـؤمنين صاحب ، له دغو څيزونو پاک او حسن ظن پرې لـرم ، ماته داثابته و ه چې ديوچا څخه به مطمين شو په هغه به يې پوره اعـتماد اوبـاور کـاوه اگـر کـه هغـه بـه دهرسمت او قـوم سره تعلـق درلـود، مايوځـل ديـوه مصلحت له مخې ورته ياده کـړه چـې زه بـه يـا پـه ننگرهار اوياهم کابل کې خدمت کوم ، ملاصاحب راته وويل چې تاسو مطلق اطاعت کوی، که مې يوه وظيفه درکوله ، که دوه او که يوه هم نه ، زه دچـا ددبـاو او مزاج تابع کيدای نشم چې ماته ووايی چې فلانی کس څخه داوظيفه او مسؤليت واخله او داورکړه.

ملاصاحب دهمدغه اعتماد اوښه گمان له مخـې، کلـه چې داسلامي امـارت دفـاع وزيـر مرحـوم ملاعبيـدالله زخمي شوی وو ، دمرحوم حـاجي معـاون صـاحب پـه توسط يې ماته حال راوليږه چې دموقت وخت لپاره دې په نورو دنـدو سربيـره ددفـاع وزارت سرپرسـتي هـم کوي، مـاچې هرڅـومره عـذر ورتـه ووايـه او دنـورو مسؤلينو نومونه مې ورته واخيستل چې هغوی مناسـب دی ، ملاصاحب په باربار راته ويل چې اوس يـې تـه پرمخ بيايه.

شوي، کوم هغه ملاقات او کتنه تاسي ته اوس هـم پـه ذهن کې ځانگړی ځای لري چې اوس هم ترينه غوره اونه هيريدونکی تاثر لری؟

**ځواب:** يوځل زه په کندهار کې لـه ملاصـاحب سره ناست وم دملاقات په جريان کې مـلا عبـدالجليل اخونـد ورتـه راغـی چـې ميلمانــه رارسـيدلی ، دغـه ميلمانـه يوپاکستانی حکومتي وفد وو چې مشری يې دهغه هيواد مهم چارواکي ترسره کوله ، ما په تبسم کې ملاصـاحب ته وويل چې ښه خبره ده تاسي ورسره مجلس وکړي خو لکه دسعودي عربستان دچارواکي (ترکی الفيصـل) يې ورسره خرابه نکـړي ، ملاصـاحب راتـه مختصر-جواب راکړ چې زه ملامت نه وم ، ملامتيا په هغه کـې وه ،ملگرو ته يې وويل چې له هغه سره دملاقات ثبت شوي فيته ورته واوروی ، غالبا ټيپ ملاصاحب ماتـه په خپل لاس کې راکړ چې جريـان واوره ، البتـه دالـه ملگرو سره دخپل مشر دتواضع اوښه برخود يو مثال وو.

**پوښتنه:** له مرحوم ملا صاحب څخـه بـه اورومـرو دمغلقو موضوعاتو په بـاب دهـداياتو طمعـه درلـوده او

دهغه په وړاندې به مو مطرح کول، ستاسي په فکر دهغه ځوابونه تاسي ته څومره مقنع او دتسلی بخش به وو؟

**ځواب:** یوځل زه دکابل او مشرقي ولایتونو له ګڼو موضوعاتو سره کندهار ته ملاصاحب تـه ورغلـی وم، دملاقات په جریان کې دځینوموضوعاتو په برخـه کـې ملاصاحب دومـره اوږد مجلس راسره وکـړ چـې پـه اخیرکې ماورته وویل چې عام خلک چـې سـتا اواز لـه راډیو څخه اوري فکر کوي چې تاسي اوږدي اوتفصیلي خبري نه خوښـوی، خـوچې کلـه څـوک درسره مخـامخ کښـیني اوسـتادلایل واوروي، نـو حیـران بـه شي، ملاصاحب زما په دې خبره تبسم وکړ او مسکی شو.یعني مونږ ته یې ښه قناعت راکړ.

**پوښتنه:** له ملاصاحب سره ستاسي ورستی ملاقـات کوم وو اوپه کومو مهمو موضـوعاتو مـو ورسره خـبري وکړي اوهم ورستي تلفوني مکالمه مو چیرته اوپـه کومـه موضوع وه، اوایا دامارت دواکمنی له سقوط ورسره مو کوم ډول اړیکه ورسره شوي، که مهرباني وکړي؟

**ځواب:** ورستی ملاقات زما، داقتصـادي کمیسـون دغړو اودچارو اداري دریس په ملتیا وو چې کندهار تـه ورغلي وو. اودروان جهادي بهیر په اوږدو کې کله چې ماته دپکتیکا او بیا دمشرقي ولایتونـو مسـؤلیت راکـړل شوی وو اوهم چې کله دسیاسي کمیسون له عزل ورسته او هـم یوځـل بیـا دملاصـاحب رحمـه الله پیغامونـه اوهدایات دهغه دقاصد په لاس راته رسیدلي وو.

**پوښتنه:** دملاصاحب رحمه الله وفات ستاسي په اند څومره ضایعه اودهغه په نه شتون کې داسلامي امارت راتلونکی څنګه ارزوی؟

**ځواب:** دې خبره کـې شـک نشـته چـې دعالیقـدر مرحوم ملاصاحب انتقال یوه لویه ضایعه ده،هغه یـو شجاع، غیرتي اوسخي آمـر وو، هغـه دخپـل حکومـت اوبیا روان جهاد په دور کې نه هیریـدونکي کارنـامي اودلوړ استقامت درسونه شاته پرې ښودلي، ټول تکالیف، فشارونه او مشکلات یې تحمل کړل خو، داسلامي نظام په سر یې له چاسره تنزل او معاملـه ونکـړه، خلاصـه داچې دملاصاحب ژونـد او مـرګ ټـول لـه عبرتونـو او شاهکاریو ډک وو، الله تعالی دې ټول خدمتونه، جهادونه ترینه قبول وګرځوي، بلـې خواتـه دهغـه ځـای ناسـتی محترم ملا اختر محمد منصـور، دمرحـوم امیـر المـومنین نیږدي ملګری پاتي شوی، هم دتیرامارت په دور کې اوهم داوسني روان جهاد په اوږدو کـې، تـردې چـې دروان مقاومت اوجهاد په اوږدو کې منصور صاحب دملاصاحب په غیاب کې لـه مرحـوم ملاعبیـدالله او ملابـرادر اخونـد ورسته معاون پاتي شوی.

زه چې څومره نـوی امیرالمـومنین پیـژنم، معقـول، مدبر اوداسلامي امارت دقیادت لپاره غوره شـخص اوښـه انتخاب دی، له الله تعالی نه امید لرم چـې دمنصورصـاحب په قیادت کې به دافغانانو لویه داعیه او غوښتنه چې هغه په هیوادکې داسلامي نظام حاکمیت او د اشغالګرو بشـپړه شکست او نابودی ده لاسته راشي او افغانان بـه دسـولي اوامن په فضا کې ژوند وکړي. ان شاء الله تعالی.

# اعتراضونه او ځوابونه

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد الله وحده والصلاة والسلام على من لانبى بعده محمد و على آله و اصحابه و من اهتدى بهديه الى يوم الـدين وبعد:

کله چې د ۱۴۳۶ هجری قمری کال د شوال په ۱۳مه د ۱۳۹۴ هجری شمسی کال د زمری میاشتی له ۷ می او د ۲۰۱۵ کال د جولائی د میاشتی له ۲۸ می نیټی سره سم رسنیو دا ویرجن خبر خپور کړ چې د افغانستان د زعیم عالیقدر امیر المؤمنین عدو الکفرو الکافرین ملا محمد عمر مجاهد رحمة الله علیه د ۲۰۱۳ زیږدیز کال د اپریل په ۲۳ مه نیټه په افغانستان کې دننه د ورپیښې شوی ناروغی له امله له دنیا رحلت کړی دی او د اسلامی امارت د عقد او حل شوری د افغانستان نوماند اتل مجاهد او د مرحوم امیرالمومنین نائب ملا اختر محمد منصور (حفظه الله) د اسلامی امارت نوی امیر ټاکلی دی او بیعت یې ورسره کړی دی او نورو ته یې هم د بیعت کولو امر کړی دی، په سبائی نړیوالو رسنیو دا خبر خپور کړ چې د اسلامی امارت ځینې اړوندو کسانو د نوی امیر په ټاکلو نیوکی کړی دی او بیعت یې ورسره نه دی کړی او هغوی د خپل مخالفت د توجیه کولو له پاره دغه لاندې دلیلونه ویلی دی:

۱ -اسلامی امارت د امیرالمؤمنین ملا محمد عمر (رحمه الله) د کورنی حق دی باید د هغه زوی یا ورور وټاکل شی.

۲ -د نوی امیر په ټاکلو کې بیړه کړې شوې ده باید لویه شورای جوړه کړی شی او امیر وټاکلی شی.

۳ -له هیواد څخه بهر بیعت کول.

۴ -د امیر المؤمنین د وفات نیټه پټ ساتل.

که څه هم ما د مرحوم عالیقدر امیرالمومنین د کورنی د کوم غړي څخه ندي اوریدلي چې ګواکې دوی د مشری مستحق دي او نه فکر کوي چې هغوئ دې په خپله خوله دغه رنګه تمایل ولري، خو داسې ښکاري چې یو لړ نور خلک دي چې د خپلو ځاني ګټو لپاره د محترم مرحوم ملا صاحب ښاغلی ځوی او یا محترم ورور د ال او سپر وګرځوي او د هغوی له نامه څخه استفاده وکړي.

بنا بـه هر تقـدیر دغـه څلـور واړه داسـې نیـوکې او اعتراضونه دی چې یوه یې هم له شریعت سره ډډه نه لګوی چې په ډیر لنډیز سره یې دلته مشروع ځوابونه وړاندې کولی

شي څو مجاهدین او هر څوک پدی اړه د صحابه کرامو رضوان الله عنهم اجمعین تعامل او د اسلام د مقدس دین د سیاسی نظام اصول او له نورو جاهلی نظامونو څخه یې توپیر او غوره والی ورته معلوم شی؟

لومړی اعتراض ځواب: لومړی باید پردی خبره باندې پوه شو چې د اسلام د دین سیاسی نظام ارثی نظام نه دی چې د ملوکیت په څېر له پاچا څخه وروسته به د هغه د کورنی کوم نیږدې غړی او قریب پاچا کیږي او ځای ناستی به یې ټاکل کیږي، بلکې د اسلام سیاسی نظام چې اصول یې د الله تعالی او د الله تعالی د رسول خاتم النبین محمد صلی الله علیه وسلم له پلوه کیښودل شوی دی. هغه څوک واکمن کېدلی شی چی شرعی وړتیا ولری او هغه یوولس مواصفات پکی موجود وی چې د اسلامی امت فقهاؤ د خلافت د شرطونو په نوم نومولی دی، چې یو له هغو څخه دادی چې په خپله به یې نه غواړی او نه به یې حریص وی. ان تردې چې په اسلامی سیاسی نظام کې د یو کوچنی منصب غوښتل هم ناروا دی او په دې اړه د عبدالرحمن بن سمره رضی الله عنه او ابوذر غفاری رضی الله عنه په هکله مروی حدیثونه په بخاری او مسلم کې نقل کړی شوی دي.

او دا هماغه عبدالرحمن بن سمره وو چې په ۳۶ هجری کې یې کابل فتح کړ او پنځه کلونه یې حکومت پری وکړ قریش او د نبی صلی الله علیه وسلم له نیږدی خپلوانو څخه وو. او هغه ته فرمایی چې: لا تسئل الامارة، امارت مه غواړه.

نو کله چې د اسلام په سیاسی نظام کې ځان ته د امارت غوښتل ناروا دی، د کورنۍ د غړو له پاره خو بیخی ناروا دی که څه هم د هغه اولاد شرعی او سیاسی وړتیا هم ولری د خلافت او امارت شرطونه پکی موجود هم وی، پدی اړه مونږ مسلمانانو ته د اسلام د دوهم خلیفه امیر المؤمنین عمر بن خطاب رضی الله تعالی عنه کړنه ستر او قاطع دلیل، کړنچاره او تګلاره ده او هغه داسی چی کله په ۲۳ هجری کې د ذوالحجی میاشتی په ۲۴ مه د چارشنبی په ورځ د سهار په لمانځه کې په نبوی جومات کې د امامت ورکولو په دوران کې په لومړی رکعت کې ایرانی مجوسی فیروز کافر په پرله پسی توګه د خنجر شپږ ګوزارونه پری وکړل او بیا د ۲۴ هجری کال د محرم په لومړی ورځې شهید کړی شو. د ناروغی په لومړی ورځ یې د عقد او حل شپږ کسیزه شوری جوړه کړه چې دغه لاندې جلیل القدره قدسیه نفوسؤ: عثمان بن عفان، علی بن ابی طالب، سعد بن وقاص، زبیر بن العوام، طلحه بن عبید الله او عبد الرحمن بن عوف رضی الله عنهم اجمعین. او دا وصیت یې ورته وکړ چې په دری ورځو کې دننه به تاسی له خپل منځ څخه د خلیفه په توګه یو کس هرومرو ټاکئ چې څلورمی ورځی ته وانړوي. دعقد وحل دغی منتخبی جرګی کی ورته وویل: ای امیر المؤمنینه! خپل زوی عبدالله بن عمر رضی الله عنه د خلیفه په توګه وټاکئ هغه د خلافت وړتیا لری او مونږ ټول پری خوښ او رضامند یو. امیر المؤمنین عمر رضی الله عنه ورته په غصه شو او ورته ویې ویل (خلافت میراثی نظام ندی) امامت و سیاست ۲۴ مخ امام قتیبه دینوری متوفی ۲۷۶هجری الاحکام السلطانیه ج ۱ مخ ۵ - امام ماوردی، فتوح البلدان ۵۷۱ - امام بلاذری ۲۷۶ ازالة الخفاء عن خلافة الخلفاء ج ۱ مخ ۵ شاه ولی الله محدث دهلــــــــــــــــوی او....

او پردی باندې د صحابه کرامو اجماع شوې ده چې د اسلام سیاسی نظام میراثی نه دی نو د افغانستان د حل او عقد شورای په دی اړه په حق پریکړه کړی وه.

د دویم اعتراض ځواب: د افغانستان د اسلامی امارت د حل او عقد شورا له ملا اختر محمد منصور سره په بیعت کولو کی بیړه کړی ده باید لومړی د شهید امیر المؤمنین ملا محمد عمر فاتحه اخیستلی شوې وای، بیا عمومی شوری جوړه کړی شوی وای چی نوی امیر المؤمنین یې ټاکلی شوی وای. د معترضینو دغه اعتراض هم سم نه دی او د صحابه کرامو له تعامل څخه خلاف دی او دواړه خبرې یې د اسلام د لومړی خلیفه، ابوبکر صدیق رضی الله عنه په بیعت سره ځوابولی شی، کله چې خاتم الانبیاء والمرسلین. رحمة اللعالمین، شفیع المذنبین محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم په ۱۱ هجری کال د ربیع الاول په ۱۲ مه د دوشنبی په ورځ د ۶۳۳ کال د جون د میاشتی له اتمی نیټی سره سم له فانی نړی څخه ویرجن رحلت وفرمایه او ګرده مدینه د نبوی بیلتون په ویر کې ډوبه شوه. په دغه شدید حالت کی هم د نبوي مدرسی روزلیو شاګردانو خپل حواس قابو کړل او له نبوی مدفن څخه دمخه د خلافت بیعت او د خلیفه ټاکل یی اړین وګڼل د نبوی جومات شاته په سقیفه بنو ساعده نومی باغیچه کې ځو تنه مجاهرین او انصار صحابه مشران سره غونډ شول او لومړی پنځو کسانو له ابوبکر صدیق سره بیعت وکړ او د خلیفه په توګه یې وټاکه چې نومونه یې دادی: ۱ -عمر بن الخطاب ۲- ابوعبیده بن الجراح ۳- سعید بن حضیر ۴- بشیر بن سعید ۵- سالم مولی ابی حذیفه رضی الله عنهم اجمعین. او بیا له هغوی څخه وروسته په سقیفه کې نورو موجودو صحابه کرامو هم بیعت ورسره وکړ. او د خلیفه له ټاکل کیدو څخه وروسته د نبی کریم صلی الله علیه جنازه وکړی شوه او دفن کړی شوی صلی الله علیه وسلم اللهم ارزقنا اتباعه و اقتدائه وشفاعتة په دی اساس د صحابه کرامو د دغه تعامل په دلیل د بیعت او د امیرد ټاکلو له پاره نه شورا اړینه ده او نه د تعزیت اجتماعی دوعاء چې یو دود او رسم دی په سقیفه بنو ساعده کې نه شورا کړی شوې وه او د خلیفه ټاکل یې له نیوی جنازی او مدفن څخه دمخه اړین ګڼلی دی. سیرة ابن هشام ۴ ټوک ۳۰۶ .تر ۳۲۲ مخ پوری په ډیر لنډیز، ماثر الانافة فی معالم الخلاقه ج ۱ مخ ۴۵ مصنف قلشقندی متوفی ۸۲۰ هـ احکام سلطانیه ۵ مخ ماوردی او.....

دریم د هیواد نه بهر بیعت: دریم اعتراض یې دادی چی له ملااختر محمد منصور حفظه الله سره له هیواد څخه بهر بیعت کړی شوی دی. که څه هم ماته نده معلومه چې ایا رښتیا هم بیعت له هیواده بهر چیرته شوي ، که شوي هم وي دغه اعتراض واهی بی اساسه او له اسلام څخه مخالف دی. ځکه چې ټول اسلامی امت او ګرد اسلامی هیوادونه ایکی یودی. اوسنۍ پولي او بریدونه کفری استعمار د اسلامی هیوادونو تر منځ ترسیم کړی دی چی په اسلامی جغرافیه کی هیڅ ارزښت نه لری. له همدې وجه له امام حسن رضی الله عنه سره د عراق په کوفه کې بیعت کړی شوی وو، پداسی حال کې چې امام حسن رضی الله عنه د مدینی منوری یعنی د حجاز د هیواد وو، په هغه وخت کې هیڅ یو صحابی او تابعی دغه واهی اعتراض پرې نه ؤ وکړی او خلافت یې صحیح ګڼلی وو.

العواصم من القواصم ص ۱۹۹ – ۲۰۳، قاضی ابوبکر بن العربی متوفی ۵۴۳ هجری قمری – تاریخ الخلفاء ص ۱۳۵ علامه سیوطی متوفی ۹۱۱ هجری، الامامة و السیاسة ص ۱۷۴].

څلورم د امیرالمؤمنین وفات پټ ساتل: د اعتراض کوونکیو دغه اعتراض هم غیر شرعی او جذباتی دی او د اسلامی امارت د حل و عقد شورا اقدام پرځای کړی دی او په قران کریم کې يې ثبوت موجود دی او هغه دا چې کله چی په ۹۴۵ څلویښت قبل میلاد مسیح کی الله تعالی سلیمان علیه السلام وفات کړ نو دهغه وفات يې یو کال له پیریانو او انسانانو څخه پټ ساتلی وو لکه چې الله تعالی په قران کریم کې په دې اړه فرمایلی دی:

فلما قضینا علیه الموت مادلهم علی موته الا دابة الارض تأکل منساته (ج) فلما خرّ تبینت الجن أن لو کانوا یعلمون الغیب مالبثوا فی العذاب المهین. د سبا سورة ۱۴ – اية ۲۲ مه سپاره ، ۳۴ سورة].

ژباړه: (نو کله چې حکم وکړ مونږ پر سلیمان د موت او دی مړ ولاړوو (تکیه پر همسا باندی یو کال) (نو هیچا خبر کړی نه ؤ دغه پیریان په مرګ د دغه سلیمان مګر چنجی د ځمکی (وینو) چې ويې خوړه همسا د ده. نو کله چی ولوید سلیمان پرځمکه نو معلوم شو پیریانو ته دغه که چیرې وی چی پوهیدی په علم دی غیب نو نه به یی تیرا وو سلامت یو کال په تکلیف مشقت سپکوونکی.

تفسیر: د اسلامی امت تفسیر پوهانو د نبوی احادیثو په رڼا کې د دغه مبارک آیة په تفسیر کې ویلی دی: د سلیمان علیه السلام پلار داؤد علیه السلام د بیت المقدس جوړولو تعمیر پیل کړی وو کله چې وفات کیده نو سلیمان علیه السلام ته یی وصیت وکړ چی د بیت المقدس تعمیر بشپړ کړی؟ سلیمان علیه السلام پر پیریانو باندې د بیت المقدس په جوړولو لګیا وو چې د ملک الموت په زریعه خبر ورکړی شو چی د مرګ نېټه يې رانږدې شوې ده نو پر پیریانو ئې ځان له پاره د ښیښې داسی خونه (کوټه) جوړه کړه چې دهغې منځنی ساحه له بهر څخه له ورایه ښکاریده، سلیمان وریکی د ننه شو او په همسا يې تکیه وکړه او الله تعالی ته يې سوال وکړ چې پیریان د ده له وفات څخه تر هغه پوری ناخبره وساته چې د بیت المقدس تعمیر بشپړ کړی.

الله تعالی د سلیمان علیه السلام سوال قبول کړ او د سلیمان علیه السلام وفات يې یو کال له پیریانو او انسانانو څخه پټ وساته او کله چې د بیت المقدس تعمیر بشپړ شوو الله تعالی د سلیمان علیه السلام د وفات راز افشاء کړ. وګوره تفسیر ابن کیثرج ۳ ص ۶۵۰ تر ۶۵۱ پوری، حافظ ابن کثیر متوفی ۷۷۴ هجری تفسیر قرطبی ج ۷ ص ۱۷۸، امام قرطبی متوفی ۶۷۱هجری، کابلی تفسیر ۲ ټوک پښتو ص ۷۲۴ – ۷۲۵، تفسیر نسفی مدارک ج ۲ ص ۲۶، امام عبدالله نسفی م ۷۱۰ هجری تفسیر معارف القرآن ۷ ټوک ۲۷۳ – ۲۷۶ پوری اردو، مولانا مفتی محمد شفیع دغه راز د خاص مصلحت په وجه نبی کریم صلی الله علیه وسلم کله چې په ۸ هجری کال چی له ۶۳۰ میلادی سرسم د مکی مکرمی د فتحه کولو پریکړه وکړه نو له عامو خلکو څخه يې دغه راز پټ وساته او په رمضان کې يې پر مکه فاتحانه یرغل وکړ. نو ددغو شرعی دلیلونو په رڼا کې د اسلامی امارت واکمنی

شوری چې د جهادی حکمت عملی پر اساس چې د امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد وفات کیدل پټ کړی وو له شریعت سره سم کام یې او چت کړی دې او دغه حسن تدبیر یې د ستاینی وړ دی ځکه چې دغه نو سنت یې د جهادو اسلامی امارت او هیواد د مصالح علیا په خاطر کړی دی.

پنځم قومی تعصب ته هڅونه: د افغانستان د اسلامی امارت د امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله د وفات د خبر له خپریدو څخه وروسته او له نوي امیر المؤمنین ملا اختر محمد منصور سره له بیعت کولو سره سم استعماری ډنډورچیانو د امریکایې تور استعمار په هدایت په خپلو رسنیو کې ولیکل: د افغانستان د اسلامی امارت پخوانی امیر په قوم هوتک پښتون وو او نوی امیر المومنین په قوم اسحاق زی پښتون دی او د دی امکان شته چې د طالبانو تر منځ قومی اختلاف او جنګونه پیل شی.

د دې خبر له خپریدو څخه وروسته په سبایې پنتاګون وحشی اسلام دښمنه شیطان جنرال کیمبل او نورو خوښی څرګنده کړه او ویې ویل: د طالب جنګیالیو تر منځ د قومی جنګ په رامنځته کیدو سره به د طالبانو ستر ګل Stragole کمزوری شی او د خپل منځی قومی جنګ په پایله کې به د طالبانو اسلامی تحریک پای ته ورسولی شی. مګر امریکایی صلیبی او یهودی طاغوتان له دی څخه عارفانه تجاهل کوی چې د افغانستان د اسلامی امارت ګرد منسوبین او عام ولس مؤمنان او د قرآن او سنت لارویان دی او د اسلامی سیاسی نظام پر الف و با پوه دی چې سرچینه یې قران کریم او نبوی حدیث دی په قرانکریم او نبوی احادیثو کې د قوم پالنی مفکوره غندلې شوی ده، بویګنه او جاهلی نظریه ګنلی شوی ده او هر مسلمان ته امر کړی شوی دی چې له داسی قوم پالنی څخه په ټینګه ځان وساتی چې ګنا وړپکی وی لکه چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی:

عن جبیر بن مطعم ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال: لیس منا من دعا الی عصبیة ولیس منا من قاتل عصبیة و لیس منا من مات علی عصبیة.

ژباړه: له جبیر بن مطعم رضی الله عنه څخه روایت دی چی رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی: هغه څوک له مونږ څخه نه دی چی قوم پالنی ته بلنه ورکوی. او هغه څوک له مونږ څخه نه دی چی د قوم پالنی په نوم له یو بل سره جنګیږی، او هغه څوک له مونږ څخه نه دی چې د نشنلیزم په نظریه مړ شی. دا حدیث ابو داود روایت کړی دی.مشکاة ۲ ټوک مخ ۵۰۵.

په دغه نبوی حدیث کې نبی کریم صلی الله علیه وسلم هغه څوک له اسلام څخه خارج ګنلی دی چی په ناحقه قوم پالنه کوی. په اسلام کې تقوا ته ارزښت ورکړی شوی دی او نبی کریم صلی الله علیه وسلم د اسلامی سیاسی نظام د مشرتابه له پاره وړتیا دیانت اسلامی سیاسی پوهه او تقوی ته ارزښت ورکړی دی نه قومیت د نسب او حسب لوړوالی ته لکه چی فرمایلی یې دی:

وعن انس ان رسول الله صلی الله وسلم قال: اسمعو و اطیعو و ان استعمل علیکم عبد حبشی کان راسه زبیبة. رواه البخاری.

ژباړه: له انس رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی: د خپل امیر امر ومنی

او اطاعت يې وکړی که څه هم پرتاسی باندی داسی حبشی غلام د امير په توګه مقرر کړی شی چې سريې د مويز (انګور) په څير کوچنی وی. دا حديث صحيح البخاری روايت کړی دی.

په پای کی د اسلامی امارت منسوبينو، مجاهدينو، افغان ولس او هر مسلمان ته زما داوړانديز دی چې د اسلامی امارت له امير المؤمنين الحاج مولوی اختر محمد منصور حفظه الله سره بيعت وکړی ځکه چې نوموړی معروف او پيژندل شوی عالم، مجاهد او متقی شخصيت دی د امارت او قيادت وړتيا لری. د افغانستان ګرد مجاهدين او علماء يې پر امارت متفق دی او په مجموع کې بلانزاع امير دی، مخالفت کول يې شرعا ناروا دی او بل دا چې پخوانی اميرالمومنين ملا محمد عمر رحمه الله په خپل ژوند کې خپل نائب يعنی ځای ناستی او وليعهد ټاکلی دی او دوه کلونه يې د هغه په ژوند کې په بشپړ تدبر، فراست او ځير کتبا سره د امارت جهادی او اداری امور ترسره کړی دی او هغه به خپل ژوند کې ورڅخه خوش وو. نو هر هغه څوک چې د نوی امير له بيعت څخه سرغړونه کوی په حقيقت کې د امير المومنين ملامحمد عمر له امر او انتخاب څخه سرغړونه کوی او دهغه روح ته صدمه او خفګان رسوي. او له دی څخه هم سخت هغه نبوی وعيد دی چې څوک له ټولنيز وحدت څخه د امارت په موضوع کې خان بيلوی او فرمايلی يې دی:

عن عرفجة قال: سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: انه سيكون هنات و هنات فمن اراد ان يفرق امر هذه الامة وهی جميع فاضربوه بالسيف كائنا من كان رواه مسلم كتاب الامارة.

ژباړه: له عرفجه رضی الله عنه څخه روايت دی چې ويلی يې دی: ما له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه واوريدل چې ويې ويل: ژر دی چې ډول ډول فتنی به ظهور وکړی. نو که چا د دې امت په اختلاف کی د رامنځته کولو اراده وکړه په داسی حال کې چې امت سره متفق وی نو اختلاف اچوونکی په توره ووهئ هر څوک چې وی. او د بيعت د وجوب په هلکه يې ويلی دی.

عن عبدالله بن عمر قال: سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول من خلع يدا من طاعة لقى الله يوم القيامة و لاحجة له و من مات و ليس فى عنقه بيعة مات ميتة جاهيلة . رواه مسلم ۳ ټوک كتاب الامارة.

ژباړه: له عبدالله بن عمر رضی الله عنها څخه روايت دی چې ويلی يې دی: ما له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه واوريدل چې ويې ويل: چا چې له امير څخه د اطاعت لاس واخيست نو دقيامت په ورځ به له الله تعالی سره په داسی حال کې ملاقی شی چې د ايمان په لرلو به هيڅ دليل ورسره نه وی او څوک چې په داسی حالت کې مړ شی چې له امير المؤمنين خليفه يا امام سره يې د بيعت کولو عقده په غاړه کې نه وی نو داسی شخص د جاهليت (کفر) په حالت کی مړ شو ان فی ذالک لذکری لمن کان له قلب او القی السمع وهو شهيد. د ق سورة].

ستاسی خواخوږی: پوهنمل زاهدی احمدزی

# شیخ القران والحدیث مولوی محمد شریف حقانی:

**مرحوم امیرالمومنین درسی به تمام رهبران مسلمانان داد که باعزم وصبر متین میتوان کفار را ولوکه ازهر نوع امکانات مادی برخوردار باشند شکست داد.**

**سوال :** جناب شیخ صاحب! شمامیدانید که در طول تاریخ افغانستان وحتی درهمه ادوار اخیر درجهان اسلام چنین دیده نشده بودکه علماء،مشائخ وقشردینی تحت قیادت واحد واطراف امیر واحد جمع شده باشند،ولی عالی قدر امیر المؤمنین ملامحمدعمر مجاهد رحمه الله این آرمان وخواب را به حقیقت مبدل ساخت،مرحوم نه تنها که روحانیون وحلقات مذهبی ودینی کشور را باهم متحد ودر امارت اسلامی افغانستان جای داده ومتفق ساخت بلکه تمام حرکت های اسلامی اهل سنت والجماعت جهان اسلام به قیادت مرحوم امیرالمؤمنین معتقد وارج میگزاشتند،شما رمز این همه موفقیت ها وعظمت مرحوم را درچه می بینید؟

**جواب :** الحمد لله الذی یحکم بالحق قطعا، یجزی کل نفس بما تسعی و الیه المآب و الرجعی والصلوه والسلام علی نبیه المصطفی وعلی اله واصحابه علم الهدا وعلی من دعی بدعوته الی یوم العقبی وبعد:

امیر المؤمنین ملامحمدعمر مجاهد رحمه الله رحمةً واسعةً در زمانه نهایت حساس وظهور فتنه های مختلف در افغانستان در یک حرکت خود جوش اسلامی ظاهر گردید، هرچه عاجل به رسانیدن وتطبیق دین مقدس اسلام به مخلوق خدا جل جلاله در زمین خدا وبه اصلاح ملت رنج دیده وجنگ زده افغانستان ونجات مظلومان از چنگ ظالمان وترقی دین ودنیای مسلمانان اقدام عملی وخستگی ناپذیر نمود وهر نوع تعصب قومی ،زبانی ،نژادی ومنطقوی را محو ه نموده یگانه اسلام را مدنظر داشت وبس،واین داعیه ومقصد بزرگ اسلامی یگانه هدفی بود که کفار ومنافقین که خلافت اسلامی را سقوط داده بودند ونمیخواستند که آن دوباره در روی زمین ظاهر گردد وبجای آن (ملل متحد) را جاگیزین کرده تقویت میکردند ومسلمانان را بنام های مختلف پارچه پارچه ساخته به کشورهای کوچک کوچک بدل کردند وتوسط افکار ضد اسلامی وضد بشری قلبهای مسلمانان را تا اندازه غافل نمودند که ایشان هرگز تصور نمیکردند،روزی فرا خواهد رسید که قیادت واحد اسلامی ووحدت صفوف اعاده گردد وخواص امت چون علماء،مشائخ واهل تصوف در دور یک امیر شرعی جمع شوند وبه آیت کریمه(واعتصموا بحبل الله جمیعا ولاتفرقوا)عمل نمایند.

ونه تنها مسلمانان افغانستان اعم ازخواص وعوام بلکه مسلمانان بافکر جهان بخصوص تنظیم های جهادی اسلامی درهرکشور جهان وقتیکه عمل وعزم متین

ملامحمدعمر مجاهد رحمه الله را دیدند و آرمان دیرینه وفراموش شده خویش را در وجود آن یافتند پس بلا درنگ امارت اسلامی را مرکز خویش قرارداده در تحت قیادت ان جمع شدند وتابه وفات مرحوم امیرالمؤمنین از ایشان اطاعت همه جانبه نمودند این بود رازموفقیت امیرالمؤمنین رحمه الله وسبب جمع شدن مسلمانان بخصوص خواص امت مسلمه درتحت قیادت مرحوم (ذلک فضل الله یؤتیه من یشاء).

**سوال :** محترم شیخ صاحب! شاید شما با مرحوم امیرالمؤمین در زمان حاکمیت امارت اسلامی در قندهار از نزدیک ملاقات کرده باشید،اگر لطف نموده پیرامون آن ملاقات روشنای بیاندازید وشمامرحوم ملاصاحب را چطور یک شخصیت دریافتید؟

**جواب :** بنده فقیر وناچیز چند بار همرای امیرالمؤمنین رحمه الله ملاقات کردم ورفقای ملاقاتی ام بمن حقیر وظیفه دادند که به نمایندگی ما با جناب امیرالمؤمنین رحمه الله صحبت نمائید ، وقتیکه باوی در صحبت شدم ایشان شخص متین وخلیق ومواصف به صفات واقعی یک امیر مسلمانان یافتم،هیوالای شنیدن سخن بکمال توجه بوی بود،چاپلوسی را بدمی دید،قبول سخن حق وبه اجرا قراردادن آن،تعظیم وفد وترغیب آنان در گسترش اسلام وترقی مسلمانان،وبرخورد باجبین باز وبا حوصله در وجود وی ملا بود،یعنی یک انسانی بظاهر آراسته بزندگی ساده ولی صاحب فضل ومعنویت تام بود،دراین ملاقات وی به رفقای ملاقاتی ام گفتند خبر شدم دیروز آمده بودید اما شمارانسبت مصروفیت وکمی وقت نخواستم وامروز را پوره برای ملاقات شما فارغ کردم میدانم که شما سخن بسیار دارید،وبنده در جزو صحبتم با الفاظ شدید وتیز گفتم اگر در امر دین ودنیاء مسلمانان درست توجه نمی کنید ودست ظالم را ولو هرکس که باشد نمیگرید وحق مظلوم را از ظالم گرفته نمی دهید جواب همه این را در آخرت میگوید ، بعد از این که فارغ شدم وی به بسیار آرامی وخوش طبعی برایم گفت اینقدر نصیحت که من را کردید این ها را نیز بکنید که کار ازدست ایشان خراب میشود یک رفیق گفت بما تمام قرآن کریم را ترجمه کرده نصیحت تام نموده است فرمود:بسیار خوب وبعد هرچیز شرعی وقانونی راکه گفتیم اجرا نمود،خلاصه سخنش از اسلام وعملش اسلام بود روحش شاد والله تعالی مغفرت اش نماید وجنت الفردوس را جایش گرداند.

**سوال :**جناب!طوریکه به شما هویدا است عالی قدر ملامحمدعمر مجاهدرحمه الله پس ازسقوط حاکمیت امارت اسلامی واشغال افغانستان توسط کفرجهانی صلیبی یک ساعت هم از خاک وحریم کشور بیرون نشده بود،ودراین سالها تمام مشکلات وتکالیف را متحمل گردیده ودراین سالیان یکی ازاعضای خانواده مجاهد خویش را ندیده بود،همینگونه مرحوم رهبری امارت اسلامی وجهاد را تا آخیر ین لحظات حیات خویش بطور احسن بپیش برد،پس شما به عزم متین،کمال توکل مرحوم ملاصاحب چه تبصره میکنید؟

**جواب :** امیرالمؤمنین ملامحمدعمر مجاهد رحمه الله نمونه اسلاف بود عزم متین وکمال توکلش نه تنها که ملل دنیایی فعلی را حیران کرده بود بلکه در رهبری جهانی وموفقیت امر محوله اش کمک سرشار کرده نصرت الله عزوجل رابوی سبب شد حق تعالی میفرماید:ان الله مع الصابرین)وایشان با این قوه معنوی کامل یعنی عزم وتوکل بی مثال درین زمانه به تمام رهبران مسلمانان درسی داد که باعزم وصبر متین میتوان کفار را ولوکه ازهر نوع امکانات مادی برخوردار باشند شکست داد.

**سوال:** اکنون که امیرالمؤمنین رحلت نمودند ومحترم ملااخترمحمد منصور(حفظه الله)بحیث جانشین وزعیم امارت اسلامی افغانستان منتخب گردیدند،به نظر شما مسؤلیت ومکلفیت راه روان داعیه سرشار عالی قدر امیرالمؤمنین ملامحمدعمر مجاهد چه است تا بتوانند وحدت صفوف خویش را حفظ ،پایه های امارت اسلامی را مستحکم نموده ودسیسه های دشمنان اسلام را نابود سازند؟

**جواب :** راه وداعیه سرشار امیرالمؤمین ملامحمدعمر مجاهد رحمه الله اسلام بود،وبه پیش برد امارت اسلامی ورسیدن بمقصد وکسب نجات دنیا وآخرت به امور آتی توجه خاص داشت:

۱- خود و افراد تحت قیادتش به تمام احکام اسلام مقیدبود.

۲- اسلام را برهر چیز دیگر ولوبضرر ظاهری هم تمام میگردید اختیار میکرد.

۳- اهون بلیتین را اختیار کرده به آن حکم می نمود.

٤-رنگ تعصب مذهبی،قومی، نژادی وزبانی را محو ساخت.

٥- افراد صالح بلکه اصلح را تا اندازه طاقت وارد خدمت می نمود.

٦- از عزم متین وتوکل بی مثال برخوردار بود.

۷- هرگز ظلم را روانداشته واز گرفتن دست ظالم ودادن حق مظلوم در هرجا که می بود بقدر وسع دریغ نمی کرد.

۸- وحدت صفوف مسلمانان بخصوص اهل فضل را درتحت یک قیادت در جهان میخواست.

۹- جهاد فی سبیل الله مقدس ترین عمل وی بوده آن را ذروه اسلام وسبب نجات مسلمانان می دانست و در آن از هیچ نوع ملامتی ملامت کننده نمی ترسید.

۱۰- ترقی دین ودنیای مسلمانان جهان یگانه آرزو وی بود.

۱۱- برتری دین اسلام برهمه ادیان باطل امید دیرینه وی بود.

۱۲- به بیت المال مسلمانان توجه خاص کرده از هرنوع دست اندازی محفوظ واز مصارف بیجا خود داری میکرد.

۱۳- یگانه مشغله اش پیاده کردن دین الله تعالی برمخلوق الله عزوجل در زمین الله واحد بود تاکه جان را به خالق جان سپرد.

اگر امیرالمؤمنین ملا اختر محمد منصور حفظه الله امور ذکرشده وراه امیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله را که درحقیقت راه اسلام است اختیار کند بدون شک صفوف امارت اسلامی درجهان متحد،پایه های آن محکم،دسیسه هاس دشمنان اسلام محوه ومضمحل،تعالی وترقی همه جانبه مسلمانان در جهان حاصل،ویک خلافت واقعی اسلامی بمیان خواهد آمد.وماذلک علی الله بعزیز.

ليکوال: نصيب ځدراڼ

# متفکر ؟؟؟؟

د ماخوستن له لمانځه وروسته يونس آغا کور ته راغی،سلام له اچولو وروسته يې له مور سره نږدې کښېناست د کوټې له يوه کونج څخه د سپين ږيري پلار د ټوخي غږ هم تر غوږو پورې رارسېدو ، يونس آغا له مور سره په خبرو بوخت وو چې پلار يې ورته را غږ کړ

يونسه بچيه!

اورم پلار جانه!

لږ دې خوا راشه

يونس سمدستي ور روان شو او دخپل پلار چې په دناروغۍ له امله له ډېره به ډېر وخت پروت وو ښنو ته کښېناست او دپلار دغږ په انتظار وو ، پلار يې چې ناروغۍ او دورور غمونو دکلي له مناسبتونو څخه راګرځولی وو زوی ته يې وويل دمحمد ګل دوی کره ورغلې ؟ ورور يې له بنده را خلاص شوی وو.

دمحمد ګل ورور درې نيم کاله په بند کې تېر کړي وو.

يونس آغا : هو پلار جانه ورغلی وم.ټول ډېر خوښ شول.

ديونس آغا يو اکا هم دباګرام په زندان کې دبند شپې سبا کولې او ديونس په پلار چې ورور يې کيږي ډېري سختي شپې تيري کړې وې او لا يې هم له زړه نه ووتلي يونس آغا پلار ته داهم وويل چې دمحمد ګل ورور دکاکا امين آغا حال هم راکړ ويل يې چې کاکا په ټولو سلامونه ويل او له باګرام څخه يې ځرخي پله ته انتقال کړی دی خو دخپلي دوسيې او دخلاصون په اړه يې څه نه وو ويلي .

پلار يې پوښتنه ترې وکړه چې دمحمد ګل ورور څنګه راخلاص شو ؟

کله چې را رخصتېدلم نو مشر- ورور شاه ګل يې راته وويل چې يو پټی مو ورته خرڅ کړ او څلور لکه افغانۍ مو قاضيانو ته ورکړې هغه وو چې دوسيه يې سپکه کړه اونن يې راخلاص کړ.

پلار يې غږ ونکړ او دمريضي او ستوماني سره سره بيا فکرونو يووړ شپه ورووړو زياتېدله دباندې دسپيو غپا وه او په هوا بې پيلوټه غږ هم ترغوږ کېده. يونس خبره اوږده کړه او زياته يې کړه چې پلار جانه دنوي حکومت خبري رواني دي کيداى شي مفکر ولسمشر شي ، خلګ خو ډېر خوښ دي او کيداى شي يو ښه بدلون راشي ، په سياست کې هم پوه دی او خلګ وايي چې اقتصاد کې هم بد نه دی ،څو ځايه يې کمپاين

زما دلاس خواري ده چې دکور گذاره او ستا علاج پرې روان دی.
آمین آغا له واده درې میاشتي وروسته امریکایانو نیولی وو او پنځه کاله یې پوره شوي وو.

پلار یې یونس ته وویل چې هو بچیه خدای دي یې را خلاص کړي زما ناروغي به هم ښه شي او په کور کې یې پیغله ښځه راته ناسته ده.

یونس : دا چې اوس څرخي پله ته رارسېدلی دی نو دنوي ولسمشر په راتگ سره به راخوشي شي که خدای کول په څرخي پله کې دومره وخت نه په تیروي. (شپږ میاشتې وروسته)

دیونس آغا دوی په کور کې دیونس دماما او پلار ترمنځ بیا دغه بحث شروع وو داځل یې ماماهم راغلی وو او یوه هم له متفکر څخه چندان خوږه خاطره نه درلوده ، څومره چې دوی ورته هیله من وو هغومره دی بالعکس وخوت

داځل یې ماما له واره په نوي ولسمشر کې وخوت او ویې ویل ، اشرف غني خو ترون هم لاسلیک کړ او امریکایانو ته یې دچاپو اجازه هم ورکړه اوس دادی له تذکیرو څخه داسلام او افغان کلیمې هم ایسته کوي.

دوی سره په خبرو و چې یونس کوټې ته راغی او سلام یې واچاوو.

پلار یې دسلام ترځوب سمدستي وروسته پوښتنه ترې وکړه څنگه شوزویه څه معلومات دي وکړل ؟

یونس غلی شو سره راټول شو اوله ژړا په ډکه لهجه یې ځواب وکړ پلارجانه دکاکا په گډون پنځه سوه بندیان یې بیرته له څرخي پله باگرام ته وړي دي ، او دبرخلیک په اړه یې هیڅ معلومات نشته.

پلار یې : داځه وایې زویه دا څنگه مفکر دی ولي دمظلومانو آزار اخلي ؟

پلار یې وړاندې هم غریبي ، مرض ، او غمونو ځپلی وو لا په تکلیف شو سهار یې دکور مخ ته گڼه گوڼه وه ورسره دکلي په جومات کې اعلان وشو چې دیونس آغا پلار وفات شوی دی لسو بجو ته یې جنازه ده.

## په اوبو کې غرقیدونکې هیواد

مالدیف یو اسلامی هیواد دی دغه هیواد اوس امکان لری چی راتلونکی څو لسیزو کښی په اوبو کی غرق سی.
ښه نو دوی ورته امادگی لری ؟
داچی ساینس پوهان وایی چی دانترکتیکا گنگلونه ویلی کیږی نو دسیندونو اوبه به د یو فټ په اندازه او یا زیات لوړ سی پداسی وخت کی دا هیواد ټول تراوبو لاندی کیږی نو ددی هیواد دوگړو دژوند کولو لپاره ندی.
ددی هیواد ولسمشر وویل چی موږ غواړو په افریقا او یا استرلیا کښی ځمکی رانیسو او خپل ټول نفسو هلته میشت کړو. دوی وایی ددی لپاره دوی پلان لری چی استرالیا کښی ځمکی رانیسی.
مالدیف هیواد دنړی دډیرو ښکلیو او منظرو ډک هیواد دی هر کال یو ملیارد ډالر عاید خاص دبهرنی سیلانیانو څخه لاسته راوړی چی همدا یی دهیواد اقتصاد برخه ده.
پاته دی نوی چی بنگلیدیش هم دهمدی مشکل سره مخ کیږی.

هڅاند

# په پېژندپاڼو(تذکرو)کې

## داسلام او افغان د کلمو حذف!!

له دويم نړيوال جنګ څخه وروسته اړينه وبلل شوه، ترڅو ملتونه او ولسونه دخپل هويت پېژندنې لپاره تذکرې ولري،او ددې پېژندپاڼو له لارې يې ديني او ملي هويت مشخص شي ،افغانستان چې هغه جنګ کې ناپيلي پاتې شوی ،خو دنړيوالو ټولنو دغړيتوب له امله يې دخپل ولس دتشخص ټاکنې پېژندپاڼې پداسې بڼو چمتو کړي ،چې ټول مذهبي او ملي ارزښتونه پکې تر پرونه مصون او محفوظ وساتل شول او دنن واکمنو ته ددې ځای پرينبودل شو ،چې وواېي پرونو واکمنودا او هغسې تګلارې خپلې کړي، نو ځکه مو دهغوئ په پل پل کښيښود .

په يوه هيواد کې پېژندپاڼه يا تذکره ديوه قام او ملت دوحدت او يووالې سمبول وي ،دهغوئ ملي هويت او مذهبي تشخص ددې تذکرې په درلودلو وپېژندل شي، چې څوک دی ،دکوم نژاد ريښې لري او دکوم دين پيرو دی ؟له بده مرغه افغانستان کې ددين پلورنکيو او پرديپالو واکمنو دتسلط په وجه په نوې سکښت يا اليکترونيکي (بريښنايي ) ستندر تذکرې جوړول ،دافغانستان دمتحدو او هماهنګو قومونودنفاق او اختلاف سبب ګرځيدلې او خبره دې پولې ته رسيدلې ،چې نورې به دابريښنايي تذکرې (خدای ج مکړه )دافغان مسلمان ولس د تبعيض او ټو ټه کيدو لامل وي، دکابل د(غ او ع ) ګډوله ديموکراتيک حکومت او نغاره چيان يې ،نور په حل نه پوهيږي او ښکارې داسې چې ډير سرګردانه دي !

هره ورځ دهيواد ګوټ ګوټ کې دديني او ملي ازرښتونو دفاع لاريونونه او احتجاجونه په څپو وي او دارګ واکداران نور نشي کولای ،چې دولس ددې توپاني څپو مخه ډب کړي او په غولوونکيو ژمنو دې ولسي توپان ته دشګو بند واچوي ،هره ورځ ددې پديدې پرضد غبرګونونو جريان لري .

دتاريخي شواهدو له مخې افغانان نږدې (۵۰۰۰)کلن تاريخي قدامت او روښانه شاليد لري او له هغه وخته چې اسلام ورته رارسيدلی ، همدې لرغونې هيوادافغانستان کې ټولو اقوامو دافغان او مسلمان تر مذهبي او تاريخي نامه لاندې، دورونو قومونو غوندې ژوند کړی ، دتوکم پالو او مغرضو هيوادونو له لمسون سربيره يې بيا هم خپل ملي او ديني هويت ساتلی او دچاپه تحريکونوندې غوليدلې.

له بده مرغه د وارداتي ولسواکۍ اوغربي يرغلګروزمونږ فقير ولس ته نژداي اختلاف اود مذهبي اور شغلې هم له ځانونو سره راوړي، چې دادی ددوئ کډې په وتلو او مونږ ته يې دخپل بد ميراث په توګه دملي اوديني ترمينالوژۍ نانديرې هم پريښودي ،داستعمارګرو هيوادونو دا عادت وي، چې دخپل استعمارپه وروستيو کلونويا پای کې دخپلې ناکامۍ په صورت کې داسې ناندريز ې او لانجمنې کشالي تر شا ولسونو ته پريږد ي،چې پيړۍ پيړۍ يې له امله کړاونه ګالي ،چې ژوندۍ بيلګې يې دنوولسمې ميلادي پيړۍ په لومړيو کې دانګريزانواو وروستيو کې دروسانوجغرافيوي ستونزې هغه

نادریز میراث وو، چې نن هم سیمه ایز هیوادونه ددوئ ددې ظالمانه مداخلو له امله کړیږي او ځوریږي .

دافغانستان غونډې یوه غریب هیوادکې چې لکونه وګړې ،یې همدا نن هم پردیو هیوادونوکې مهاجر او خپل ټاټوبي کې دکوراو سرپناه ځای نلري ،دامریکایانو دملیاردونواو بیلونونو ډالرو دبسپنو داعلان سربیره بیاهم موهیوادکې نه داقتصاد دزیربناء کومه اساسي پروژه پیل شوه او نه چا دفقر دمخنیوي بنیادي لارې چارې وسنجولې ،همدا اوس موهره ورځ لسګونه ځوانان عربي اواروپایي هیوادونو ته د فقر او غربت په وجه د(٪۸۰ )احتمالي مړینې دامکان سربیره دمهلکو سمندرونو له لارې تیریږي ،هیواد کې داقتصادي رغښت اساسي پروژه دبریښنا تولید او دښارونو نه علاوه کلیو ،بانډواو صنعتي فابریکوپورې یې دتارونو غځول دي ،چې له بده مرغه دیرغلګرو ددومره لاپو شاپو او دکابل دلاسپوڅې حکومت په اصطلاح بیوکراتانواوتکنوکراتانو دغورزو پرزوسربیره بیا هم دغربت او فقر څادر پر ولس خپور دی او دځو ګوتو شمیر خلکو نه په غیر عام ولس داقتصادي بحران سره لاس وګریبان دی .

دولس ددومره اقتصادي ستونزو باوجود بیا هم دکابل دحکومت دمخابراتو وزیر(انجنیر مسکن) په (۲۲/۹/۱۳۸۹)ل کال کې اعلان وکړ، چې دکابل حکومت به ټولو افغانانوته د(۱۰۰۰۰۰۰۰)سل میلونه ډالرو په پلان سره دبریښنایي یا الیکترونیکي پیژندپاڼو تابیا نیولې او دا پروسه به ددوو نه تر پنځو کالو پورې بشپړه شي ، بیا یې وویل چې ددې پروژې قرارداد د (ګرانډ ټکنالوجي ریسورس) په نوم یوې افغان کمپنی سره لاسلیک شوی دی. چې وینا یې ټول لګښت به پرې یو سلو یو نیم میلیون ډالره وشي .....دا پروسه اوس داسې یو ګام دی ،چې دافغانستان غونډې یو غریب هیوادلپاره دې وخت او زمان کې هیڅ ضرور نلري او نه یې ورته اړتیا شته ،ولس له لوږې مرې او دکور ځای نلري، حکومت ورته داروپا ماډل تذکرې جوړوي، په هرصورت ددې بریښنایي پیژندپاڼو پروسه داسې ناګواره حالاتو کې دمړې خیټې پاړسي ده،ددې نه مخکې نورې ډیرې اړتیاوې وې، چې دوئ یې باید پر وړاندې دحل اقدام کړی وی او داولویت حق یې دهیواد رغولو،ولسي اقتصاد او غربت ته ورکړی وی ،که رښتیا یې دولس پرمختګ غرض وي، نو دداسې کمپیوټرایز تذکرو ویشنه ډیره بعدي خبره وه، نه ددې وخت اړتیا !

اوس یوه بله جنجالي موضوع چې ددې بریښنایي تذکروپه ویش او چاپ کې درسنیو دسر خط دی ،هغه داچې ړومبی دپیژندپاڼوپه مسوده کې هم نه وه او نه یې چارواکې چندان په غم کې وو،دتذکرو له متن څخه د(اسلام او افغان )دوزینو کلمو ظالمانه حذفول او پرځای یې افغانان تر (۵۰۰۰۰)پنځه زره یا پنځه نیم زره کلن تاریخ وروسته بي هویته پریښودل ،ددې تاریخ جوړونکې قام دتشخص څرګندونه مسخ ده ،ددین کلمه په تذکره کې هغه مذهبي نښه ده، چې مسلمان له کافره ،مشرک ،یهودي او نصراني څخه تفکیک کوي ،که زمونږ پداسې پرمختللیو تذکرو کې دافغان کلمه نه وي، نو ددې معنی داشوه، چې پنځه یا پنځه نیم زره کاله مو تاریخ شاته لاړه، خپل تاریخ مو مسخه کړ،او که ددین او اسلام کلمه پکې نه وي، نو دامعنی شوه،چې ددې تذکرې هیوادکې داسلام دین (خدای ج مکړه )ضرور ندی اوواکمن غواړي، په لوی لاس مسلمان قام سیکولریزم او لیبرالیزم ته ورټیل وهي ،او ګونډې دکابل چارواکې غواړي چې خدای ج مکړه افغانان به داسلام سره تدریجې مینه کمه کړي، څونور منسوخو ادیانو خواته دجلب او جذب ځمکه همواره شي .

یقنیاً دکابل دادارې ډیره خطرناکه لوبه پیل کړې او ددې پایلې ډیر ې خطرناکې دي ،ددوئ په فکر به راتلونکې نسل ته دافغانیت او اسلامیت ارزښتونه لومړیتوب ونه لري او پدې سره به زمونږ اسلامي ټولنه (خدای ج مکړه ) یوه سیکولر

او بې دینه ټولنه شي او دیرغلګرو اهداف بـه پـه ډېـره اسانـۍ سره پوره شي .

پداسې حال کې د(غ او ع)ګډ حکومت پخپلـه دهغـه اساسي قانون له موادو چورلټ تخلف هم کوي، چې ددوئ پـه شتون اوحضور کې دهغې خیمې لانـدې دا قـانون جوړ شوی ،چې له غربیانو او یرغلګرو لخوا ورته تهیه شوي وه ،دهمدې اداري داســـاسي قـــانون مـــوادهم دکابـــل داوســـنیو چارواکیودفرمانونو او توشیح سره سراسر په ټکر کې دي او له امله یې باید، لویه څارونوالې دارګ واکمنـان محاکمـه کـړي ، لکه په لاندې توګه چې لیکـي :د افغانسـتان د اساسي قـانون لومړۍ مـاده داسي وایـي: افغانسـتان خپـواک، واحـد، او نـه بیلیدونکی اسلامي جمهوري دولت دی.

له بل لوري د افغانستان د اساسي قانون څلورمه مـاده هـم ډېر واضح د ملت او مـلي حاکمیـت پـه اړه څرګندونـه کـوي: ((په افغانستان کښې ملي حاکمیت په ملت پورې اړه لري چې په مستقیم ډول یې په خپله او یا د خپلو استازو له لارې عملي کوي.

د افغانسـتان ملـت (افغـان) لـه پښـتون، تاجـک، هـزاره، ازبک، ترکمن، بلوچ، پشه یې، نورستاني، ایماق، عـرب، قرغیـز، قزلباش، ګوجر، براهوي، او نورو قومونو څخه جوړ دی.

د افغان کلمه د افغانستان په هر فرد اطلاق کیږي، د ملت هیڅ یو فرد د افغانستان له تابعیت څخـه نـه محرومیـږي، پـه تابعیت او پنا ورکولو پورې مربـوطې چارې د قـانون لـه لارې تنظمیږي.))

که پورته مادې ته ځیر شو، څرګندوي چې د افغانسـتان د ټولو قومونو څخه هر وګړی د یوه افغان په نوم یادیږي، له بل لوري د اساسي قانون د ۲۸مې مادې دوهم بند داسي دی: هیڅ افغان د تابعیت په سلبیدو او په افغانستان کې دننه یا بهر پـه شړل کیـدو نـه محکـومیږي. لـه دې څرګنـده شـوه چـې ددې هیواد هر تبـع تـه د افغـان کلمـه کـارول شـوې ........)اوس نـو سړی نه پوهیږي ،چې ددې چارواکیو په باب څه ډول پریکړه وکړي، دیوې خوانه خپل اساسي قـانون پـه نوروخلکـو محتـرم بولي، خو دبلې خوا یې بیا مادې نه منـي ،کـه طالبـانو سره پـه اصطلاح سوله او روغـه کـوي، نـو وایـې چـې لومړی شرط یـې دادی چې طالبان به اساسي قانون مني، نو بیـا بـه ورسره ددې آیین په رڼا کې جرګـه کوو،خوچې کلـه چـې ددوئ دهـوا او هوس خبره وي او دملیت او دین خبره وي ،نـو بیـا نـه اساسي قانون پیژني او نه آیین !!!

لکـه مخکـې مـو چـې پـرې صراحـت وکړ،الیکترونیکـي پیژندپاڼې یا تـذکرې پـه اوسنیو حـالاتوکې یـو مـلا مـاتونکې اقتصادي ولسی ضربه ده، او بل پکې نه دافغان هویت محفوظ شوی اونه دمسلمان تشخص ،بلکې دا هسې یو کالبوت یا هسـې یـوه رنګـین کمپیـوترې ډیـزاین شـوی کـارت دی ، غربیـان غواړې څو ددې بریښـنایي تـذکرو لارې ،څخـه دیـوه افغـان مسلمان بشپړ معلومات او مشخصات ترلاسه کـړي او دده ټـول کړه وړه دسپوږمکـۍ یا انټرنیټ له لارې وڅاري او هم دځینـو شننانـدو پـه قـول دوئ غـواړې چـې داسلام او افغـان کلماتـو دحذف له لارې پر هغو عیسوي شویو افغانـانو پـرده واچـوي، چې دیرغل په کلونو کې مرتـد او عیسویان شوي دي،ترڅـو دافغانانو له ګولیو او ماشیندارو ځانونه وژغوري، نو یـې ددوئ دساتنې دا چاره وړ وبلله، لکـه ځینـو تحلیلګرانـو چـې ددې نانـدریزو تذکرو دویش مخالفت کړی او یـو لـړ تخنیکـي او حیاتي دلایل یې ددې دممانعت داسې وړانـدې کـړي : ... ددې ټولـو خـبرو سره او س داخـبره مهمـه ده ،چـې افغـان الیکترونیکي تذکرې دې نه ویشـل کیږي،ځکـه ددغـه تـذکرو دویـش، الیکترونیکـي حفاظـت نیمکـړی ،بلکـې دنشـت پـه حساب دی، بل خواته دغه شخصي معلومات پـه لـړ تعـدیل او هیکینـګ سره کیـدای شي، د نـړۍ دهروګـړي پـه لاس کـې پریوزي، چې دهغې عمده دلایل په لاندې ډول دي.

لومړی: افغانستان مستقل انټرنټ او ددغه انټرنټ د حفاظت او(سیفټي) وسایل یا فني کسان نلري چې دومره لویه(ډ یټا) له هرډول سیمه ایزاو نړی وال ګواښ څخه وساتلی شي.

دوهم : اوسنی افغان انټرنیټ چې داد څو اشغالي کلونو راهسې په هیواد کې استعمالیږي، د هغې مرکز او کنټرول روم یا دانتشارمرکزپه کوم ګاونډي هیواد کې دی ،که څه هم دا زمونږ مسلمان همسایه هیواد وي، خو وبه نه توانیږي، چې افغان انټرنټ له نړی وال الیکټرونیکي ګواښ څخه وژغوري.

دریم: ترڅو افغانستان خپله معلوماتي مصنوعي (سپوږمکۍ) ونلري او له یوې مستقلې معلوماتي او تجسسي- شبکې کاروانخلي ،ترهغه مناسبه نده، چې الیکټرونیکي تذکیري یا پاسپورټونه وویشي، ځکه حفاظت یې نشي- کولای او دغه معلومات هره لحظه بدلیدای او جعلي کیدای شي ،داکاربه دمنظم اوغیرمنظم جرم په پلي کولوکې ډیره مرسته وکړي او بیا به ډیرمظلومان دالیکټرونیکي مافیا درحم اوکرم لاندي ژوند کولو ته مجبوریږي او دهغوی شخصیتونه اوکورنۍ به ګواښل کیږي او هیڅوک به یې بیا خبره هم نه مني او دلایل به هم ورته نشي پیداکولای، خپل معلومات به ورباندي ظلماً او زوراً ګواهي ورکوي.

څلورم: داچې افغانستان د جنګ په حالت کې دی، وبه نه توانیږي، چې به دغه ظاهري او نمایشي- کارونولکه دالیکټرونیکی تذکرو ویش پرمختګ وکړي او یا روان جنګي بحران څخه ووځي، ځکه داکارونه (الیکټرونیکي) تذکیري پاسپورټونه کوم اساسي یا ستراتیژیک کارونه ندي، ستراتیژیک کارونه دادي، امنیت ، له بهرنیو هیوادونو ځانونه ازادول اویوشرعي قانوني ،مستقل اواسلامی حکومت ،چې د افغان اولس په خوښه وي او هیڅوک له خپلو حقوقو محروم نه وي، ولرواوبیا خپل انجینران او الیکټرونیکي متخصصین پیداکړو ،خپل ډیټا بیسونه ولرو، بل چاته محتاج نشو ،انټرنیټ مو په بشپړ ډول محفوظ وي، تردې ټولو کارونو وروسته کولای شو، په محفوظ شکل تذکیرې او پاسپورټونه وویشو....

ددې بي هویته تذکرو ویشنه یا توزیع په(۲۰۱۳/۱۲/۰۱) نیټه دکابل دولسي- جرګي او مشرانوجرګګیو ترمینځ هم نادرې راپیدا کړي ،هاغه وخت په ولسی جرګه کې پریکړه وشوه، چې پدې تذکرو کې دې د اسلام او افغان کلمات داخل شي، خو چې کله دولسي جرګې همدا دتوثیق اوتایید پریکړه مشرانو جرګې ته لیږدول کیده، نودولسي- جرګې دهغه مهال دویم مرستیال (صالح محمد سلجوقي)چې عین وخت کې دهرات وکیل هم وو ،مشرانو جرګې ته دعدم توثیق پریکړه ولیږله او دکابل دولسی جرګې تصویب شوي فیصله یې تحریف کړه، چې بیا یې په خلاف دکابل دولسي- جرګې وکیلانو څرګندونې وکړي او داموضوع یې رسنیو ته هم راوایسته او....او.....

که خبره رالنډه کړو داسې به ووایو، چې په یوداسې مستعمره شوي هیوادکې چې، لاهم یې دخارجي یرغلګرو پوځي شتون خپلواکي ګواښي ،وګړې یې یو هوسا ژوند نلري ،اقتصاد یې په صفرکې ضرب دی ،اتباع یې لویه برخه دهجرت په ټاټوبي کې اوسي ،داولس غوڅ اکثریت یې داسلام ددین پیروان او افغاني کلتوراو تهذیب ځانته ویاړ او افتخار بولي، او دسرپه بیه هم ددې دواړو ارزښتونو څخه نه تیریږي او دانټرنیټ دحفاظت یوډول تضمین یې شتون نلري او ....او.....نو پداسې حالاتو کې ددې بي هویته او بي تشخصه پیژندپانو توزیع کول، یو ستر تاریخي جرم ،دافغان قام سره لویه جفا او داشرف غني او ډاکټر عبدالله داسلامیت او افغانیت له ازموینې پرته بل څه ندي ،که چیرته یې بیا هم وویشي- دارګ ددې واکمنوپه باب به داولس سره ډیرې پوښتنې پیدا شي او تاریخ به یې دا ستر تاریخي خیانت معاف نکړي !!!

# غولوونکي اصطلاحات

مولوي عبدالهادي (مجاهد)

کفار

د تل لپاره کوښښ کوي چې د اسلام په خلاف په جګړه کې د توري او ټوپک تر څنګ په خپل سیاسي او فکري فرهنګ کې یو څه داسې غولوونکي اصطلاحات هم رائج کړي چې د هغو تر شا خپل د اسلام دښمنۍ اهداف پټ کړي او هغو ته په رواج ورکولو د کفارو په خلاف د مسلمانانو د کرکې او نفرت څپاند عواطف ساړه کړي، او په دغو دروغجنو او غولوونکو اصطلاحاتو مسلمانان د جهاد او مبارزې له لارې منحرف او فکري قناعتونه یې وربدل کړي.

پدې لړکې د (نړیوالې ټولنې)، (International Community) د (نړیوالو قواوو) (International Forces) او (نړیوال قانون)، (International Law) اصطلاح ګانې هم دي.

د نړیوال ټکی په لغوي لحاظ دا مفهوم افاده کوي چې هر څه او یا هر تصمیم او تړون چې نړیوال ګڼلی کېږي په هغو کې باید د نړۍ ټول ملتونه شریک وي، رأیه دې یې په هغو کې دخیله وي، حقوق دې یې ورکې په اصولي شکل مساوي وي، او د نړۍ ټول ملتونه دې په هغه کې برابر حیثیت ولري. هېڅ اقدام دې هم داسې نه کېږي چې ترڅو د هغه په هلکه د ټولو هېوادونو او ملتونو نظر نه وي پوښتل شوی. د مثال په ډول د کوم تصمیم په نیولو او یا د کوم اقدام په کولو کې چې امریکا، روسیه، چین، برتانیا او فرانسې ته کوم حق ورکول کېږي، هماغه حق دې مالدیف، مالي، روندا، یمن، لبنان، موریتانیا او افغانستان ته هم حاصل وي.

همدارنګه د قوانینو، لوائحو، او دستاتیرو په وضع کې چې څنګه د غرب لپاره د صلیبیت، صهیونیزم، ډیموکراسۍ او لیبرالیزم نظریات مراعات کېږي، همداسې باید د اسلامي نړۍ لپاره د اسلام دین او شریعت هم د هغو په وضع او تصویب کې مراعات شي.

خو په عمل کې دغه د (نړیوال) اصطلاح یوه دروغجنه او غولوونکې اصطلاح ده چې کفري زورو هېوادونه یې د خپلو مقاصدو د تحقق او خپلو اقداماتو ته د جواز ورکولو لپاره کاروي.

افغانستان ته راغلي بهرني یرغلګر او استعماري مؤسسې هم ځان ته (نړیواله ټولنه) وایې، او دلته یې خپل وجود چې د بمونو او مسلحو پوځونو په زور تثبیت کړی د (نړیوالې ټولنې) په وجود تعبیر وي، او هم غربي صلیبي قواؤ ته چې په زور، تهدید، تطمیع، او کرایه یې د څو نورو کمزورو هېوادونو خلک هم له ځانه سره ملګري کړي دي د (نړیوالو قواوو) نوم ورکوي، پداسې حال کې چې د امریکا جمهور رئیس (جورج ډبلیو بوش) د افغانستان د نیولو په پیل کې ټولې

نړۍ ته د تهدید دا اعلان کړی وو چې یا به د ده ملګرتیا کوي، او یا به یې له دښمنو سره یو ځای کېږي. دریمې نظریې او موقف ته ورکې هیڅ ځای نه لیدل کیده.

د (نړیوالو قواو) معنی خو دا ده چې په هغو کې به د نړۍ د ټولو هېوادونو قواوې د متساوي صلاحیت پر بنسټ د داسې یوې ادارې تر قیادت لاندې راټولې شوې وي چې د یو خاص هېواد تر تاثیر او کنټرول لاندې نه وي، او دغه قواوې به د نړۍ د هېوادونو تر منځ سوله ییزې چارې پرمخ بیایي، نه دا چې کمزوري هېوادونه دې د عسکري قوت په واسطه اشغال کړي، پر هغوئ دې جنګ مسلط کړي، په لکونو خلک دې یې ووژني، ولسونه دې له خپل واک او اختیار څخه محروم کړي، د هیواد د سیاسي، نظامي، امنیتي، اقتصادي، فرهنګي او تعلیمي چارو واک او اختیار دې په خپل انحصار کې ونیسي، هېڅ قانون دې نه مني، او هېڅ جهت دې که هغه ملي وي او که بین المللي هغوئ نشي محاکمه کولی، او له دې هر څه سره دې یې بیا هم نوم (نړیوالې د امنیت ساتنې قواوې) وي.

همدارنګه (نړیوال قانون) هم د هغو لوائحو، ضوابطو او طرزالعلومو مجموعه ده چې د نړۍ د زورورو هېوادونو د فرمایشاتو پر اساس د هغوئ د بین المللي مصالحو د تحقق لپاره جوړه شوې ده. د دغو قوانینو په وضع کې نه مسلمانان پوښتل شوي، او نه هم د اسلام دین ته ورکښې پاملرنه شوې ده، بلکې ټول احکام او لوائح یې د لیبرالیزم، غربي پانګه وال نظام، او یا له دین څخه د منکر کمونیزم له فلسفې څخه راخیستل شوي دي، او د دنیا د نورو کمزورو هېوادونو تر څنګ په نړۍ کې تقریبا یو نیم ملیارد مسلمان د هغو پر منلو مجبور کړل شوي دي، پرته له دې چې د دوئ د دین او عقیدې څه رعایت دې ورکې شوی وي.

دا چې مخکې غربي هېوادونو او روسیې اسلامي هېوادونه په یوازې یوازې ځان اشغال کړي ول او په لسګونو کلونه یې هغه تر خپل پوځي استعمار لاندې ساتلي ول، خو بیا هم خلک د اشغالګرو په خلاف په هر ځای کې راپورته شول او هغوئ یې له اسلامي هېوادونو څخه تېښتې ته اړ کړل. دا ځل د دې پر ځای چې استعماري هېوادونه بیا په یوازې یوازې ډول بېلابېل مسلمان هېوادونه اشغال کړي او پر ملتونو یې خپله اراده په زوره ورتحمیل کړي او بیا د خلکو د کرکې وړ وګرځي نو دا ځل یې په اجتماعي ډول د کمزورو هېوادونو او مسلمانانو په خلاف اقدامات پیل کړي دي، او پر هغو ادارو مؤسساتو، پوځونو، او قوانینو چې دوئ یې د خپلو اهدافو د ترلاسه کولو لپاره ایجاد وي د (نړیوالو ادارو، نړیوالو مؤسساتو، نړیوالو قواوو، او نړیوالو قوانینو) نومونه ږدي. پداسې حال کې چې نړیوال له دغو بې رحمه او ظالمانه اقداماتو څخه بېزاره دي، او د خپلې تباهۍ اصلي عوامل یې بولي.

دې هر څه ته د (نړیوال) نوم د دې لپاره ورکول کېږي تر څو خلک وغولوي، او دا قناعت ورته ورکړي چې دغه ډول ادارې او اقدامات یوازې په زورواکو هېوادونو پورې اړه نه لري، بلکې دا د ټولې نړۍ د ولسونو، هېوادونو او دینونو غوښتنه ده او خلک یې باید په سړه سینه ومني، او په مقابل کې یې هېڅ حساسیت ونه ښیي. خو حقیقت دا دی چې (نړیواله ټولنه) د کفري هېوادونو د ټولنې او (نړیوالې قواوی) د کفري اشغالګرو قواو، او (نړیوال قوانین) د کفري قوانینو نومونه دي که څه هم چې دوئ یې په درواغو ټولې نړۍ ته منسوبوي.

داسې دلایل نشته چې دجهاد فریضه دې پرې ساقطه شي، نه اشغال پای ته رسیدلی، نه اسلامي حکومت قایم شوي اونه هیواد خپلواک دی.
داسلامي امارت نوی زعیم هوډ لري چې که کوم ملګري معقول اعتراض ولري هغه اوري او دهغوی درضایت اوجلب لپاره به کوشش کوي.

ځانګړې مرکه



# د اسلامي امارت ویاند ذبیح الله مجاهد

## یو لړمهمو سوالونو ته ځوابونه ویلي

**درنو لوستونکو افغان اسلامي اژانس داسلامي امارت له ویاند ذبیح الله مجاهد سره په یولړ مهمو موضوعاتو مرکه کړې دمرکې اهمیت ته په کتوسره یې له اسلامي اژانس نه په مننه کټ مټ نشرته سپارو.**

د ملا محمد عمر مجاهد مرګ هغه څه و، چې ټولې نړۍ یې انتظار ویست، ځکه چې ملا عمر افغان طالبانو ته د جنګ د جذبو او ولولو ورکوونکی، او د هغوی د وحدت نښه وه،درې اونۍ مخکې نړۍ د ملا عمر د نیشتوالي اعلان واورېد، خو پر دې تحریک یې کوم ځانګړی تاثیر ونه کړ.

د ملا محمد عمر تر مرګ وروسته د نوي مشر ټاکل، د ځینو طالب مشرانو مخالفتونه، د طالبانو د تحریک سره د القاعده د تنظیم بیا یو ځای کېدل، له هیواده بهر د طالبانو غونډې او پرې د افغان دولت اعتراضونه، او د سولې پروسه په ټپه درېدل هغه موضوعات وو چې په اړه یې ډېرې پوښتنې لا هم نه دي ځواب شوي.

د طالبانو ویاند وایي چې د ملا عمر له مرګ وروسته د نوي امیر د ټاکلو په اړه راپیدا شوې ستونزې مخ پر حل کېدو دي، هغه د ملا عمر د ژوند په اړه هم لنډ معلومات ورکړي دي.

افغان اسلامي اژانس د همدې موضوعاتو په اړه د طالبانو د ویاند ذبیح الله مجاهد سره ځانګړې مرکه کړې، پوښتنې په ایمل استول شوي، او تر لاسه شوي دي، اژانس یې د خپلې نشراتي پالیسۍ تر مخې د سوال او ځواب په بڼه کټ مټ نشر ته سپاري.

۱ ـ د ملا محمد عمر مجاهد تر وفات وروسته ځینو پخوانیو او اوسنیو مشرانو د نوي مشر سره مخالفت وښود، ددې مخالفت علت څه دي؟

ځواب:

په هر حرکت او نظام کې په داخلي کچه د ځینو مسایلو له وجې نارضایتونه او اعتراضونه موجود او یا راپورته کیږي، دعالیقدر امیرالمومنین مرحوم ملامحمدعمر مجاهد وفات او د هغه پر ځای جانشیني مهمه موضوع او یو مهم تحول و، نو ممکن ځینو ملګرو باندې دغه جریان درونډ تمام شوی وي او هڅه یې کړې وي چې خپل اعتراض رسنیو ته ووایي او دا هم له امکان څخه لیرې نه ده چې ځینو مغرضو حلقو په لوی لاس هڅه کړې وي چې د اسلامي امارت په منځ کې د درز او تفرقې اچولو کمپاین وچلوي، خو چې څومره اوس فکر کیږي ، دغه پورته شوي اوویل شوي اعتراضونه د خاموشه کیدو او حل کیدو خواته روان دي، د اسلامي امارت محترم قیادت اوپه خاص ډول جناب منصور صاحب کلکه ارزو او هوډ لري چې که کوم ملګري معقول اعتراض ولري هغه

اوري او د هغوی درضایت اوجلب لپاره په کوشش کوي.

بلـه خبره داده چې مخالفت کوونکي، اعتراض کوونکي او یا هم گیلمن وروڼه که څه هم ډیرمحدود کسان وو، خودغه څوکسه هم پریوه مشخصه اومشترکه نقطه سره متحد نه وو، بلکې د هریوه دمخالفت انگیزه بیله وه.

خو اوس چې د نوي امیرموضوع نوره حل شوه اوامارت یوځل بیا د نوي امیرپه اکثریتي بیعت سره په پښو ودرید، نور به ټول وروڼه ان شاالله ترخپلو جزي خبرو تیرېږي لکه چې یو شمیر یې تیر هم شول اوهم به امارت د هغوي د بشپړه رضایت لپاره ممکنه او مزید کوششونه وکړي.

۲ ـ د نوي امیر تر ټاکلو وروسته د قطر دفتر مشر ـ استعفاء ورکړه، تر اوسه یې د نوي امیر سره د بیعت اعلان هم نه دي کړي، ایا طیب اغا له اسلامي امارته جلا شوي؟

ځواب: شک نه شته چې محترم طیب اغاد امارت په لیکو کې ډیرې سترپاوي گاللي او نه هیردونکي خدموتنه یې ترسره کړي ، دا چې هغه په خپله خوښه استعفا ورکړه ،کیدای شي دابه ورته مناسبه ښکاره شوي وي ،خو هغه اوس هم موږ داسلامي امارت غړي بولو او ملگري هڅه کوي چې له تجربو څخه یې گټه پورته کړي اوداسې کوم لوي واټن منځ کې نه وینو چې الله مکړه هغه دجهاد له دغه لوي صف څخه مخ واړوي، هغه په خپل استعفي لیک کې هم ویلي وچې (د سیاسي دفتر مشرتوب پریږدم خو له طالبانو سره د فرد په حیث ملگري یم).

۳ ـ د سید طیب اغا تگ، قطر د حکومت او نورې نړۍ سره ستاسې پر اړیکو اغیز کړي؟

ځواب:

زموږپالیسي په اشخاصونه راڅرخي، بلکې په اهدافو اوسیاستونو راڅرخي، په همدې محورنړۍ او هیوادونه ضرورت لري ترڅو اسلامي امارت سره اړیکې وساتي،همداډول د اسلامي امارت سیاسي کمیسون خپله رسمي لایحه اوتگلوري لري اولوایح داشخاصو په تغیر اوتبدیل سره د سکتگي ښکار نه گرځي، بل دا چې له محترم طیب اغا سره دامارت یوخورا لوي کاري ټیم ملگري و هغوی اوس هم په خپل کار مصروفه دي او خپله اغا صاحب به هم لکه څنگه چې یې ویلي دي همکاري کوي.

۴ ـ د لومړیو ورځو په پرتله اوس حالت عادي ښکاري، ویلای شئ چې ملا اختر محمد منصور د ستونزو د حل او اعتراض کوونکو د نیوکو د ځواب لپاره څه اقدامات کړي؟ او څه نتیجه یې ورکړې ده؟

ځواب:

عالیقدر امیرالمومنین ملا اخترمحمد منصور دا ٦ یا ٧ کاله د دې تحریک او امارت عملي مشري وکړه، هرکشر ـ اومشر ـ یې له نږدې وپیژاند اوهرکشر اومشرپرهغه باور لاره، هغه ته ددغه کاروان مشري اوکنترول تربل هرچا اسانه و، ځکه خو شورا اوعلماوو دده مشري پسې تاییدکړه.

-هغه په لومړي خطبه کې تر واردمخه خپل هرناراضي معاف کړ اودوروري اوگډ کاربلنه یې ورکړه.

-هغه په عمل کې له چانه هیڅ پټ نه کړل، ټول اختیارېې شورا اوعلماووته وسپاره، چې شورا اوعلماوو هغه مجبورکړ اوداميرپه توگه یې بیعت ورسره وکړ.

-هغه ترپایه داعتراض کوونکو اوگیلمنو ورڼو پرمخ دروازې بندې نه کړې، بلکې مسلسل یې ورسره تفاهم اولیدو کاتوته دوام ورکړ، هرې تونډې گیلې ته یې نرم اوخوږ جواب ورکړ، همدا وجه وه، چې اکثریت یې په حقیقت پوه شول اوله امارت سره یې بیعت وکړ.

۵ ـ ملا اختر محمد منصور په خپلو لومړیو څرگندونو کې طالبانو ته د جگړې (جهاد) د دوام امر وکړ، دا

څرګندونې داسې تعبیر شوې چې نور د خبرو لړۍ ودرېده، ایا همداسې ده؟ که داسې نه وي او تاسې په خبرو باور لرئ، نو د افغان دولت سره د خبرو په تړاو مو اوس هم هماغه دریځ دي چې نه ورسره کینئ؟

ځواب:

لـه دښمن سره دهیواد ازادي او اشـغال دپـای تـه رسـیدو لپـاره دنامستقیم تفاهم ګنجایش پخوا هم و اوس هم شته.

او د جها د دوام خبره خو زمـوږ همیشـني موقـف دی، هیڅکلـه مـو دجهاد د دریـدلو اعـلان نـه دي کړي اونـه داسي دلایـل تراوسـه شـته چـې دجهاد فریضه دي پرې ساقطه شې، نـه اشـغال پـاي تـه رسیدلي، نـه اسـلامي حکومت قایم شوي اونه هیواد خپلواک دي.

٦ـ نړیوالې ټولنې د همیشه لپاره ویلي چې طالبان دې د تروریستي ډلـو (نړیوالـو وسله والـو ډلـو) سره اړیکـې پرې کړي، د تېرو کلونو پـه اوږدو کـې طالبانو هم په خپلو بیـانونو کـې ویلي چې نه په افغانستان کـې بهـرني وسله وال شـته او نـه ورسره طالبـان اړیکـې لري، اوس چې د القاعده مشرـ ایمن الظـواهري د مـلا منصـور سره بیعـت وکړ، او هغه ومانه، دا په دې دلالت نه کوي چې د طالبـانو او نړیـوالې ټولنې تر منځ یو ځل بیا خلیج رامنځته شو؟

ځواب:

موږ دامارت د حاکمیت له زمانې پالیسيـ داوه چې دنـورو پـه چـاروکې لاس وهنـه نـه کـوو، لـه نـړۍ سره مـو سـفارتي اړیکـې غوښـتې، کومـو هیوادونـوچې پـه رسـمیت پیژنـدلو هغوي ته مو سفیران لیږلې وو، کومـو چـې نـه پیژنـدلو لـه هغـوي سره موداړیکوجوړولو هڅې کولې

خـو د دې ترڅنـګ مـوږ د نـړۍ مظلوم مسلمانان او اشخاص هم نشو هیرولـی دا زمـوږ انسـاني اواسـلامي مسئولیت دی، چې دمظلوم مسلمان سره خواخوږي ولرو، کـه نـور هغـه تـه هرنوم کاروي خوزموږ دعقیدې وروړنه دي.

موږله چانه غوښتنه نـه ده کـړې، چې زموږ له هیواد نه بهردې زموږ سره بیعت وکړي، خوکه هغـوي یـې پخپلـه مینه کوي، نو دنـه منلوشرعي حق نـه لرو، چې بیعـت تـه یـې منفي جـواب ورکړو، بلکې بایـد دهغـوي محبـت تـه مثبت ځواب ووایو.

خـو داددې پـه معنـا نـه ده چـې زمـوږ خـاوره دې زموږپـه پـیروي کـې څوک دچا پرضد وکاروي، دایوضرورت اومجبوریت دي چې بایـد دنـړۍ هـر هیواد دځان دښمن نـه کـړو اوتـش پـه تشه دخپلو پالیسیو پـه وجـه دامریکـا ملګري زیـات نـه کـړو، همـدا حکمـت اوضرورت دي، چې باید دبانـدي نـړۍ رانه عملي ستونځې ونه ویني.

٧ـ د ازبکستان اسلامي خوځښت په نوم ډلې په یوه ویډیو کـې د داعش ملاتړ اعلان کړ، ویل کیږي، د دې ډلې مرکزیـت افغانسـتان کـې دي، کـه افغانستان کـې میشته وي، ممکنـه ده وواياست چې دغه ډلـه تـر کـوم بـیرغ لاندې فعالیت کوي؟ د طالبانو اړیکـې ورسره څنګه دي؟

ځواب:

داچـې د دې ډلـې مرکزیـت پـه افغانستان کې دي داسمه نه ده.

پـه افغانسـتان کـې چـې څـوک جهـادکوي هغـه دامـارت تـربیرغ اوپالیسي لاندې جهادکوي.

داوخـت دداعـش پـه نامـه خلـګ یوازي دننګرهارپه یو دوو ولسوالیو کې شتون لري، چې پاکستاني اتباع دي، له پاکستانه را اوړي اوډیرکم تعداد ددې سـیمي ځوانـان هـم پکـې شـته، نـور دهیواد په کوم بل ځاي کې په دې نامه څوک نه دي پاتي.

٨ـ په ناروې او قطر کې دطالبانو د استازو سره د افغان ټولنې د ځینو غړو لیدنو څه نتیجه ورکړې ده؟

ځواب:

داسـلامي امـارت دسـياسي کميسون پاليسي داده چې خپله داعيه هرځای هرچاته وراوروي، ترڅو خلک يـوازي دميـډيا دپروپاګنـډ لـه لاري دامارت څيره مطالعه نکړي.

پـه مجمـوع کـې اسلامي امـارت خپل پيغام اودريځ لـه دې لارې نـړۍ اوافغانانوتـه پـه ښـه توګـه روښـانه کړاوهمدا يې نتيجه ده.

۹ ـ دا چې ويـل کيـږي د طالبـانو مشران له هيواده بهر غونډې کـوي، دا سمه ده؟ طالبان د هيواد داخل ته ولې خپل فعاليتونه نه انتقالوي؟

ځواب:

تاسو پوهيږئ چې زموږ مجاهدين دهيوادپـه ټولـو ولايتونـوکې پـه عمـلي جګـړه بوخـت دي، دولايتونـو جهـادي مسئولين ټـول پخپلـو ولايتونـوکې دي، ځيني وروڼه ښايي د ځينې مجبوريتونو له امله دګاونډيو هيوادونوله جغرافيې استفاده کوي، خودا ددې پـه معنـا نـه ده چې هلته زموږ مربوط خلګ د چاپـه خوښه يابلنه تللي، له همـدي املـه خـو زموږ ډيرمهم کسان اسيران شـوي هـم دي، حتي چې ځينـې يـې پـه زنـدانونو کې شهيدان شوي دي.

ډيري هغه افغانان چـې دطالبـانو په حکومت کـې يـې دنـده اجـرا کـړې دامريکايي تجاوز نه وروسته هجرت ته اړشوي اوهرلورته چـې دشـپې تېرځـاي ور پيداشوي هغه لورته يې مخه کړې، طبعـي خـبره ده پـه دې لړکـې هغـه هيوادونه په لومړي قطارکې راځي چـې په جغرافيـوي اوکلتـوري لحـاظ ورتـلل اسـانه دي اولـه درو لسيزو راهيسـې افغان مهاجرين پکې اوسي.

که ددې ډول هيوادونـو سرحـدې سيمې دمهمـو غونـډو لپاره مجبـورا کارول سوې، داهيڅکله په دې معنا نـه دي، چـې چـادې موږتـه پـه لـوي لاس موقع راکړې وي.

۱۰ــ د مـلا محمـد عمرمجاهـد د وفـات خـبر پـټ سـاتل دقيقـاً د چـا پرېکړه وه، او طالبانو تـه يـې څـه ګټـه کړې ده؟

ځواب:

د اميرالمــــومنين رحمــــه الله دکـورنۍ، او د امـارت د قضـا او افتـاء مسـئولو علـماي کرامـواو اودامـارت درهبري شوري ځينو غړواومشرتابه پـه ګډه ددې خبرې د پټولو فيصلـه کـړې وه، ګټه يې دا وه چې هغه وخت يوڅـه بحراني حالت و، اويو لړ تازه ستونځې وې چې په دې اعلان سره ښايي نـورې هـم زيـاتې شـوې وای، اوس الحمـدلله موږله هغه بحراني حالت نه راوتلي يو.

۱ :که د افغانستان ملت وپوښـتي چې پر افغانستان د امريکا د يرغـل پـه اوايلـو کـې مـلا محمـد عمر لـه نـړۍ کوچېدلي و، يا ادعا وکـړي چـې بنـدي و، يا نه و، طالبـان بـه يـې څنګـه ثابتـه کـړي، چـې هغـه دولـس کالـه جګـړه رهبري کړې، او هغه د ملت مشر و؟

ځواب:

اميرالمـــــومنين رحمــــه الله دامريکايي يرغل نه وروسته تـر يوکـال پوري له يوشمېرقوماندانانوسره عمـلي نظـامي اجـرآت کـول، وروسـته يـې دامنيتي دلايلو له امله شورا ته اډيـويي کيسټونه رالېږل چې هغـه تراوسـه لا دامـارت لـه مربوطـو کسـانوسره شـته اوځينـې يـې پـر انټرنيـټ هـم خپـاره شـوي. ددې ترڅنـګ يـې دامـارت مشرتابه ته ليکونه اوقاصدان هـم تلـل راتلـل، نوپـه دې اړه نورشـواهدوته څـه ضرورت دي؟

۱۲ـ او د وروستۍ پوښـتنې پـه توګه:

طالبان به د کوم هدف تر حصـول پوري خپلې مبارزې او جګړې تـه دوام ورکوي

ځواب:

د امـارت هـدف ډيـرا واضح دي، دټولو خارجي قواوو عملي وتل، دهيواد خپلواکي، پـه هيـوادکې اسلامي نظام حاکميدل).

لیکنه: انجنیر احرار

## رښتیا هم

# خپلواکي لرو؟!

د روان کال د زمري د میاشتې ۲۸ مه له انګریزانو د خپلواکۍ له ورځې سره سمون لري. ۹۶ کاله وړاندې په همدې ورځ افغانانو د پخواني نیواک(استعمار) یا بریتانیا څخه خپلواکي واخیسته او افغانستان د بریتانوي لښکرو څخه پاک شو. دا ورځ هر کال د افغانستان د وخت د دولتونو لخوا په مختلفو بڼو لمانځل کېږي. دا ورځ په داسې وخت کې هم لمانځل کېږي چې عملا د همدغه نیواک څخه یوازې د دوی لښکرې وتلې وې، خو نظام او چارواکي د همدغه نیواک مزدوران او لاسپوځي وو. امان الله خان چې د دې ورځ ویاړ ورته منسوبېږي په داسې حال کې لمانځله چې بېرته د ښکیلاک له فکري استعمار سره لاس او ګریوان و. نوموړي د افغانانو د اسلامي غیرت پر مټ د نیواک ځواکونه ایستلي وو، خو په مقابل کې یې خپل مغز همدې نیواک اشغال کړی و. همدارنګه د شوري اتحاد د اشغال په وخت کې هم د افغانستان د خپلواکۍ کلیزه په داسې حال کې لمانځل کېده، چې په عملا افغانستان د شوروي اتحاد د پوځونو لخوا اشغال شوی و!

د ۲۰۰۱ز کال را په دیخوا بیا هم افغان چاوراکي د افغانستان د خپلواکۍ ورځ په داسې حال کې لمانځي (!) چې د همدغه ښکیلاکګر هېواد له سرتیرو سربېره د نورو لس ګونو اشغال ګرو هېوادونو سرتیري عملا شتون لري او د اخاوره یې اشغال کړې. د خپلواکۍ دا ورځ داسې لمانځي چې د همدغه هېواد ځواکونه د خپلواکۍ د مراسمو امنیت ساتي! او لګښتونه یې ورته چمتو کوي!

**خو اوس پوښتنه دا ده چې موږ رښتیا هم ازادي و ګټله؟ ایا ازادي یوازې همدې ته وایي چې د نیواکګر ځواک لښکرې و ایستل شي؟ ایا موږ له سیاسي، اقتصادي، فرهنګي اړخه ازادي لرو؟ ایا نظام مو بېرته د خپلې عقیدې پر بنسټ جوړ کړ؟**

که ژور فکر وکړو او له موضوع سره احساساتي او عاطفي چلند و نه کړو، نو ځواب به مو نه وي! ځکه: موږ یوازې د بریتانویانو لښکرې و ایستلې، اما له فکري اړخه مو پاچا غلام و؛ بېرته لوديځ ته ولاړ او له راتګ سره سم یې افغانانو ته د لودیځ فرهنګ راوړ او غوښتل یې په



فرهنګي او فکري لحاظ مو د لوديځ د جاهل فکر غلامان کړي. سياسي نظام مو غېر اسلامي و او سياسي مشران به هغه څوک و چې لوديځ او د لوديځ ګټو ته به ژمن و. د سوبې له ګټلو مو وروسته ديته پام و نه کړ چې بېرته بايد څنګه نظام جوړ کړو او له بده مرغه بېرته را باندې داسې نظامونه واکمن شول چې له سياسي اړخه د لوديځ او په ځانګړې توګه د بريتانيا لاسپوڅي وو او د همدې هېواد د ګټو د خونديتوب لپاره به لوېدل.

د امان الله خان د دولت له نسکورېدو وروسته داسې انګېرل کېده چې شايي اسلامي نظام را باندې واکمن شي، خو يو ځل بيا نيواک مداخله وکړه او د نادر خان په مشرۍ يې بيا لاسپوڅی نظام را باندې واکمن کړ او د کلونو کلونو لپاره يې راباندې د خپلې جاسوسې او مزدورې کورنۍ واکمني وچلوله. همدارنګه همدې واکمنې کورنۍ افغان مسلمان ولس په لوږه، فقر، بې سوادۍ او ناپوهۍ کې ساتلو وو تر څو ويښ نه شي او د دوی او د بادار د پلانونو پر وړاندې و نه درېږي.

د شرم او ننګ ځای دا دی چې دا ورځ اوس هم په داسې حال کې لمانځل کېږي چې افغان ولس د لوديځ چې امريکا يې رهبري کوي تر ستوني استعمار کړی دی. زموږ امنيت، سياست، اقتصاد، فرهنګ، ښوونه او روزنه، پوځي ځواکونه او هر څه ددوی په لاس کې دي. همدا نيواک د دولت چارې پر مخ بيايي او د خلکو دغولولو لپاره يوازې د دولت سمبوليک مشران افغانان دي او د دوی له غوښتنو يو قدم هم مخکې وروسته نه شي تللی. څوارلس کاله کېږي چې هماغه بريتانويان يو ځل بيا زموږ په خاوره واکمن دي او تر اوسه يې زموږ په زر ګونه مسلمان ورونه وژلي او لا يې هم وژني.

افغانان او ټول اسلامي امت به هغه وخت ازادي وګټي چې نه يوازې د پانګوال – ډيموکرات نظام نيواکګرې ظالمې او وحشي لښکرې و ايستل شي، بلکې بېرته د اسلامي عقيدې څخه را ټوکېدلی نظام وربانديې واکمن شي. سياست، اقتصاد، فرهنګ، ښوونه او روزنه، قضا او د ژوند لويې او کوچنۍ برخې يې د اسلامي عقيدې تر پوښښ لاندې راشي او په هر څه کې لوديځ ته نه، بلکې الله سبحانه و تعالی ته مرا جعه وکړي.

# د قران کريم ظاهري او باطني آداب

قاري حکيم الله

## دقرانکريم ظاهري آداب

لومړی: په اوداسه به په ډېر عزت او ادب مخ پر قبله کښېني.

دوهم: د تلاوت په وخت کي به تلوارنه کوي په ترتيل او تجويد سره به يې وايي يعني په آرمتيا سره ، سره د دې چي د حروفو د مخرجونو د اداء کولو خيال به ساتي.

دريم: د ژړا کوښښ دي کوي که څه هم په تکليف سره ځان ژړه غونی کړي.

څلورم: د رحمت او د عذاب د آيتونو حق دي اداء کوي لکه مخکي چي تېر سول.

پنځم: که چيري د ريا شک وي يا د بل مسلمان د تکليف او زيان وېره وي نو کرار دي يې وايي که نه نو په زوره دي يې وايي.

شپږم: قرآنکريم به په ښکلي آواز وايي ځکه د قرآنکريم په تلاوت کي د آواز پر ښکلا باندی په ډېرو حديثونو کي ټينګار سوی دئ.

## د قران کريم باطني آداب

لومړی: د تلاوت په وخت کي به په زړه کي د قرآنکريم درنښت او لويي ساتي، چي د څومره لويي مرتبې کلام دئ.

دوهم: د الله جل جلاله لوی شان، لوی والی او لوړوالی به په زړه کي ساتي، چي د چا کلام دئ.

دريم: زړه به د وسوسو د خطرنو څخه پاک ساتي.

څلورم: په معنی کي دي يې غور او فکر کوي په خوند دي يې تلاوت کوي، ځکه نبی صلی الله عليه وسلم يو ځلي ټوله شپه د دې آيت په لوستلوسره تېره کړه: إِنْ تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ وَإِنْ تَغْفِرْ لَهُمْ فَإِنَّكَ أَنْتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ. (المائده ۱۱۸)

ژباړه :(اې الله جل جلاله!) که ته دوی په عذاب کړې نو دوی ستا بندګان دي او که بخښنه ورته وکړې نو بېشکه ته غالب او د حکمت څښتن یې.

سعيد بن جبير رضي الله عنه يو واري ټوله شپه په دې آيات تېره کړه :وَامْتَازُوا الْيَوْمَ أَيُّهَا الْمُجْرِمُونَ. (يس ۵۸)

ژباړه : اې مجرمانو! نن ورځ (د قيامت په ورځ) د فرمانبردارو انسانانو څخه جلا سئ.

پنځم: کوم آيتونه چي تلاوت کوې نو زړه دي د هغوی تابع و ګرځوه د مثال په ډول که چيري د رحمت آيت ولولې نو زړه دي د خوشحالۍ ډک کړه او که د عذاب آيات راسي نو زړه دي د وېري څخه ورپوه.

شپږم: غوږونه به دومره متوجه کړي چي ګويا الله جل جلاله پخپله کلام فرمايي او دی يې اوري. الله جل جلاله دي يوازي پخپله مهربانۍ او فضل سره د دې آدابو سره د تلاوت توفيق ما او تاسو ته راکړي.

مسئله : دومره اندازه قرآنکريم يادول چي لمونځ په روا کېږي پر هر مسلمان باندي فرض عين دي او د ټوله قرآنکريم يادول فرض کفايي دي که خدای جل جلاله مکړه هيڅوک حافظ نه وي ټوله مسلمانان ګنهکاران کېږي بلکي زرکشي رحمة الله عليه د ملا عالي قاری رحمة الله عليه څخه نقل کړی دئ: چي په کوم ښار يا کلي کي د قرآنکريم لوستونکی نه وي نو ټوله ګنهکاران دي اوس د ګمراهۍ او جهالت په زمانه کي عامه آوازه دا هم ده چي د قرآنکريم يادول بې فايدې کار دئ او د قرآنکريم الفاظ په تکرار سره لوستل بې عقلي بلل کېږي، د الفاظو يادول يې د دماغ کمزوری بلل کېږي او د وخت ضايع کېدل بلل کېږي، که چيری زموږ دا د بې دينۍ وبا خپره وي پر دغه موضوع به مي يو څه په تفصيل سره ليکلي وای خو دلته هره ادا مرض دئ او هر فکر د باطل لوری ته راخېژی پر کوم شی باندی ژاړې او د چا څخه شکايت کوې.

فَإِلی المشتکی والله المستعان

# ګلځونه

## مستې انګازې

مولوي رضوان الله (فیضاني)

بیــــا روانـــــې د غازیـــــانو قـــافلې دي
لـــور پـــه لـــوري د تکبـــیر تکبـــیر نعـــرې دي

پـــر غلـــیم بانـــدې بـــه جـــوړ کانـــدي محشرـــ بیـــا
پاربـــدلي یـــې پـــه زړونـــو کـــې جـــذبې دي

د اســـلام تـــوغ یـــې لاســـونو کـــې نیـــولی
قهربـــــدلي بیـــــا مـــــؤمنې پرګنـــــې دي

د تکبـــیر ځـــوږ پـــه هـــر لـــور اوربـــدل کېـــږي
غـــرو رغـــو کـــې یـــې بیـــا مستـــې انګـــازې دي

لـــه هـــر خوانـــه بلـــوا جـــوړه ده راګـــیر دی
د پـــاک دیـــن وطـــن دښـــمن بانـــدې حملـــې دي

تـــه مـــو مـــل شـــه کامیـــابي کـــړه راپـــه برخـــه
ذوالجلالـــه ســـتا نصرـــت تـــه مـــو اسرې دي

(فیضـــــاني) دا بشـــــارت زه درکومـــــــه
رانیـــــږدې د لویـــــو فتحـــــو ورځـــــې شـــــپې دي

## پردو راسره وژړل

ګـــــل را سره وژړل ازغـــــو را سره وژړل
غـــم کـــې د جانـــان د هجـــر شـــپو را سره وژړل

دا مې بې وسي وه چې یـو تـه مـې پـه ژړا نـه کـړې
نـــور خـــو ســـتا د چـــم لویـــو وړو را سره وژړل

ستوري د اسمان ګوته په خوله ورتـه حـیران وو ټـول
داســـې ســـتا یـــادونو پښـــتنو را سره وژړل

تـرس یـې زمـا ځـیرې ګرېـوان بانـدې پیـدا شـولو
روغ عـــالم یـــې څـــه چـــې لېونـــو را سره وژړل

چا چې به زمـا او سـتا پـه مینـځ کـې غـمازي کړلـه
نـــن بـــې وفـــا یـــاره هـــم هغـــو را سره وژړل

ګل د زلمي توب د خالد ستا په لاس کښې مـړاوی شـو
خپل مـې بیـا هـم خپـل وو خـو پـردو را سره وژړل

## ای مسلمانانو!

**اول خـــو د یرغلګـــرو کفـــارو او د دوی لـــه ګوډاګیـــو عساکرو سره جهاد وکړئ، نن ورځ په ټولو مسلمانانو جهاد د لمانځه په څېر فرض عین دی، او که جهـاد تـه تللی نـه شـئ نـو د مجاهـدینو، کونـډو، یتیمانـو او اسیرانو سره خو مالي مرستې وکړئ .**

**که دا کار مو هم ونه کړ، نو قسم درته خورم چـې پـه بل هیڅ نیک عمل به د خدای پاک له محاسبې خـلاص نه شئ.**

مولوي رضوان الله (فيضاني)

## اميرالمؤمنين ملا محمد عمر مجاهد

د تاريخ ستره اتله قهرمان ملا عمره
د غيرت نوم دې لګېږي پرجهان ملا عمره

وې د رب د رحمت سيورى پر مظلومو مسلمانو
هر کافرته وې سم تندر د اسمان ملا عمره

تا ديو مؤمن لپاره مال او ځان هم حکومت خپل
د الله د دين په ننګ ټول کړل قربان ملا عمره

اى د وخت ثالث عمره مونږ به تل دربانده وياړو
د سپېڅلي سپين کاروان مولوى ځاروان ملا عمره

د خليل ياد دې تازه کړبت شکن د زمانې شوې
آفرين دې په غيرت او کلک ايمان ملا عمره

که عرب دي که عجم دي ټول پرتا باندې راټول شول
ته وارث د پيغمبر وې قدردان ملا عمره

هر عمل دې په قرآن او احاديثو برابر وو
ښکلى لمرد اعتدال وې پرمونږ ګران ملا عمره

(فيضاني) وايي ستا ياد به تل ترتله راسره وي
د مؤمن ولس د هيلو ترجمان ملا عمره

## سيد احسان الله الهام

# په کلو پراته وي

بيرته تلاى نشي په تړلو بسترو پراته وي
دلته د ورځي په مخ راشي په کلو پراته وي

مونږ په پټ لمر دسهارچاى څښو چي لمونځ وکوو
دوى فکر کړى وي چي دوى به ترسپيدو پراته وي

ته خو پخپله مري چي راشې تا يخ څه ليدلى
دلته ليوان له ډيره يخه په سلګو پراته وي

که ضد کوې نو خير دى راشه ته به هم ووينې
تر ځان ښاغلي چي په کليو او بانډو پراته وي

حسين ګلشن دى شين ځنګل دى افغانى ټاټوبى
دلته غازيان لکه زمريان په سنګرو پراته وي

زماخو يقين دى ته هم پوخ که دا يقين در سره
هيڅ به مات نه شي چي الله ته په سجدو پراته وي

سپر طاقت وي په جوش راشي بياشي پر الهامه!
د سميټي ډيوالو شاته له بريدو پراته وي

## دزړه سره او دسترګو توره !(طالب جانه)

الله ج دي زمونږ له سره مه کموه ته زمونږ دسرتاج يې.
ستا له لاسه داسلام دښمنان اودهغوي ګوډاګيان په ارامه خوب نه شي کولي.
يواځې ته يې چې داسلام دحاکميت غوښتونکې يې.
تا ددنيا ژوند ته شاکړه اوخپل اسلاميت دې ټولې نړې ته وښوده.
ستاپه مقابل کې دنړې هرڅه بى ارزښته دي
هرهغه څوک چې ستا شکرانه نه اداکوي هغه به دالله ج دلوي نعمت کفران کوي.

# معرفی امیر تعین شده جدید امارت اسلامی افغانستان محترم

# ملا اختر محمد منصور حفظه الله

بسم الله الرحمن الرحیم

(وَالَّذِينَ جَاهَدُوا فِينَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا وَإِنَّ اللَّهَ لَمَعَ الْمُحْسِنِينَ) [العنكبوت: ٦٩].

الحمد لله رب العالمين، والعاقبة للمتقين، والصلاة والسلام على سيد الانبياء والمرسلين، قائد المجاهدين نبينا ومولانا محمد عليه افضل الصلوات والتسليم وعلى آله وأصحابه ومن اهتدى بهديه اجمعين وبعد.

شخصیت های قیادی صف جهاد عموما دارای صلاحیت های ویژه رهبری می باشند.

بسا اوقات آنان به شکل موهوبی دارای این صلاحیت ها می باشند و گاهی هم این صلاحیت ها را در جریان تربیه و پرورش جهادی از جانب مجاهدین مسئول دیگر به طور کسبی بدست می آورند.

قیادت های جهادی بنابر اخلاص و فداکاری شان مورد مرحمت، نصرت و مهربانی خاص الهی قرار می گیرند، الله تعالی درین مورد می فرماید:

(وَالَّذِينَ جَاهَدُوا فِينَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا وَإِنَّ اللَّهَ لَمَعَ الْمُحْسِنِينَ) [العنكبوت:(٦٩) «و کسانی که در راه ما جهاد کنند، یقینا به راههای خویش هدایت شان می کنیم و یقینا خداوند با نیکوکاران است».

امارت اسلامی افغانستان که در عصر حاضر یک سنگر مستحکم جهاد و مبارزه علیه کفر و استبداد به سطح جهان پنداشته می شود، لله الحمد رهبران تاسیسی آن از صلاحیت ها و مهارت های فوق العاده به شکل موهوبی برخوردار می باشند.

مرحوم ملا محمد عمر (مجاهد) رحمه الله، موسس امارت اسلامی شخصا مجموعهء زنده یی از صلاحیت های قیادی بود. وی توانست در میدان جهاد و مبارزه علیه کفر جهانی به شکل عملی صلاحیت های قیادت و رهبری مسلمانان را به برخی از مجاهدینی تلقین کند که جهت حاکمیت نظام الله تعالی با وی همراه بودند.

امیر المؤمنین ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله در پهلوی بودن یک قائد عسکری یک مربی روحی واخلاقی شاگردان مدرسه جهاد (مجاهدین) نیز بود.

مدرسهء جهادی عمری تحت قیادت وی اشخاص متعددی را تربیه کرد که هر یک از آنان در حساس ترین شرائط عصر- توانایی و صلاحیت قیادت جهادی کامل مسلمانان را دارا هستند.

در نهضت ها وحرکت های جهادی اساسات مذهبی نقش محوری را نسبت به اشخاص بازی می کند، آنجا امور بر اساس انگیزه و فکر جهادی تنظیم می شود و ارشادات قرآنی و کارنامه های رسول اکرم صلی الله علیه وسلم و خلفای راشدین خط مشی اساسی رهروان نهضت می باشد.

در چنین حرکت های فکری مسئولیت اساسی قائد و رهبر، همانا تربیهء اخلاقی و فکری و نیز انگیزه دهی فکری برای افراد ورهروان خویش می باشد.

مرحوم امیر المؤمنین ملامحمد عمر (مجاهد) در آغاز تحریک اسلامی طالبان و در جریان تأسیس امارت اسلامی پیش از پیش برای قیادت و رهبری جهادی آینده، عده یی از مجاهدین با بصیرت و دارای مشخصات قیادت را تربیه کرده است که میتوانند در شرائط خیلی دشوار و حساس جهاد و مبارزه قافلهء جهادی را به طور مطلوب

آن، تا به منزل مقصود برسانند. چنان شخصیت های دلیر وغیرتمند که در حال مواجه شدن با هر نوع مشکلات نه احساس دست و پاچگی می کنند و نه هم تحت تاثیر و فشار شرائط سخت مکانی و زمانی قرار می گیرند.

یکی از این شخصیت های با بصیرت و از شاگردان متین مدرسهء عمری محترم ملا اختر محمد (منصور) حفظه الله زعیم برگزیده کنونی امارت اسلامی است که امور قیادت را عملا در حیات عالیقدر امیر المومنین آغاز نمود و بعد از اعلان وفات وی از جانب اشخاص معتبر اهل الحل والعقد امارت اسلامی، علمای کرام، شخصیت های جهادی و شخصیت های ملی دیگر منحیث زعیم جدید امارت اسلامی تعین گردید.

با وجود اینکه امیر جدید امارت اسلامی شخصیت شناخته شده در حلقات جهادی و تحریک می باشد، مگر جهت تعارف بیشتر و کامل مجاهدین امارت اسلامی و محبین امارت اسلامی در جهان اسلام با شخصیت جهادی وقیادی منصور صاحب مناسب می دانیم تا سطوری چند دربارهء شهرت و معرفت وی را به تحریر بگیریم.

**الف : تولد وی:**

محترم ملا اختر محمد منصور فرزند الحاج محمد جان در سال ۱۳۴۷ هـ ش ـ ۱۹۶۸ م در قریهء بند تیمور ولسوالی میوند ولایت کندهار تولد شده است.

چون خانواده نامبرده به سطح منطقه یک خانوادهء متدین و علم دوست بود و جناب والد شان نیز یک شخصیت علم دوست بود، پس جهت تربیهء سالم منصور صاحب انتخاب اول برای وی تحصیل علوم دینی بود.

**ب: تعلیم وی:**

جناب منصور صاحب در هفت سالگی به رهنمایی والد صاحب خویش شامل مکتب محل و مسجد قریه شامل شعبهء تعلیم دینی شد، چون از طفلی نشانه های دانش، ذکاوت و بصیرت در وی آشکار بود در پهلوی پدر خویش از جانب اساتذه نیز تحت تربیه و پرورش خاص قرار گرفت.

نامبرده بر اساس لیاقت علمی سرشار خویش توانست در مدت کوتاه دروس ابتدایی عصری و دینی خود را به موفقیت به پایان برساند و جهت دروس متوسطه راه مسافرت را برای طلب علم اختیار کرد و بسوی مدرسه های مشهور گام نهاد، که آنجا نیز بر اساس ذکاوت فطری و اخلاق اسلامی نیکوی خویش در میان شاگردان هم سویهء خویش امتیاز شاگرد زیرک و اخلاقی را بدست آورد و تعلیمات متوسطهء خودرا به پایان رسانید.

جناب منصور صاحب در مرحلهء تعلیمات عالی دینی شامل نشده بود که حاکمیت سیاسی افغانستان به دست کمونستان افتاد و افغان های مجاهد علیه آنان قیام کردند.

**ج: جهاد و مبارزه سیاسی وی:**

بعد از تجاوز اشغالگران شوروی در سال ۱۹۷۸م بر افغانستان ملت افغانستان مقاومت اسلامی خویش را علیه آنان آغاز کردند.

جناب ملا اختر محمد منصور در سالهای اوسط اشغال شوروی ها، که در این هنگام نیت شمولیت در مرحلهء بعدی تکمیل تعلیمات شرعی را داشت به سبب اشغال کشور تعلیمات خویش را ناتمام گذاشت، مگر بنا بر محبت زیادی که با تحصیل داشت هرگاهی که از سنگر بر می گشت دروس باقیمانده را با استادان خاص خود آغاز می کرد که با همین عزم راسخ خویش توانست تعلیمات شرعی خویش را از دورهء کوچک تا به دورهء بزرگ احادیث برساند سپس به طور نهایی بجای مدارس دینی بسوی جبهات جهادی توجه خود را معطوف داشت.

محترم منصور صاحب که در آن هنگام دههء دوم عمر خودرا تکمیل می نمود، مانند یک جوان نیرومند بحیث یک مجاهد با شهامت و غیرتی به شکل شعوری به غرض دفاع از دین و کشور خود راه جهاد مسلحانه علیه شوروی ها و کمونستان داخلی را اختیار کرد.

وی در سال ۱۹۸۵م جبهه قوماندان مشهور شهید قاری عزیز الله را در ولایت کندهار برای فعالیت های جهادی خود اختیار کرد و در منطقهء پاشمول ولسوالی پنجوایی تحت سرپرستی شخصیت جهادی مشهور به سطح کشور، الحاج ملا محمد حسن آخند که در زمان

حاکمیت امارت اسلامی معاون ریاست الوزراء بود به فعالیت های جهادی خود علیه اشغالگران شوروی و کمونستان داخلی ادامه داد. جبهه جهادی شهید قاری عزیز الله متعلق به تنظیم حرکت انقلاب اسلامی شخصیت جهادی مرحوم مولوی محمد نبی محمدی بود که بعد از شهادت قاری صاحب به فرماندهی قوماندان ملا حاجی محمد آخند در تنظیم حزب اسلامی شخصیت جهادی مرحوم مولوی محمد یونس خالص رسمیت حاصل کرد.

محترم منصور صاحب در عملیات های زیادی علیه اشغالگران شوروی و حامیان داخلی آنان نقش فعال داشت ویکبار در سال ۱۹۸۷م در ساحهء سنزری ولسوالی پنجوایی ولایت کندهار در جریان عملیات مستقیم بر یک مرکز ستراتیژیک روس ها چنان زخمی گردید که جسد وی سیزده زخم برداشته بود مگر الله تعالی وی را شفا داد. برای بار دوم در سال ۱۹۹۷م در زمان حاکمیت امارت اسلامی در میدان هوایی مزار شریف زخمی شد و در همین حالت از جانب مخالفین اسیر نیز گردیده بود.

**نقش تأسیسی وی در تحریک اسلامی طالبان:**

جناب منصور صاحب در سال ۱۹۹۲م بعد از سقوط نظام کمونستی در افغانستان و آغاز جنگ های داخلی مانند مجاهدین مخلص دیگر در جبهه خود، اسلحهء خودرا بر زمین گذاشت و در تداوم جنگ نا مشروع آغاز شده بر سر قدرت از هیچ جانبی حمایت نکرد.

منصور صاحب که در این هنگام یک مجاهد مشهور و در میان مجاهدین از شهرت نیکی برخوردار بود مانند شخصیت های جهادی و قوماندانان نظامی دیگر منطقه مانند مرحوم ملا محمد ربانی، شهید حاجی ملا محمد و شهید ملا بورجان با انتخاب زندگی عادی از هر نوع فعالیت های تنظیمی دست بردار شده و به بعضی فعالیت های علمی و تربیوی مشغول شد.

در سال ۱۹۹٤م همزمان با تأسیس تحریک اسلامی طالبان توسط امیر المومنین ملا محمد عمر مجاهد در پیشبرد این تحریک نقش محوری را بازی کرد.

بر اساس لیاقت اداری و جهادی، برای وی از جانب امیر تحریک طالبان بعضی مسئولیت های مهم سپرده شد که بعضی آن قرار ذیل است:

۱. بعد از کامیابی تحریک اسلامی طالبان در زون جنوب غرب و تصرف ولایت کندهار بر اساس اعتمادی که امیر المومنین ملا محمد عمر (مجاهد) بر لیاقت اداری و فعالیت های جناب منصور صاحب داشت وی را بحیث مسئول عمومی میدان هوایی کندهار تعیین کرد.

۲. بعد از تصرف ولایت کندهار توسط طالبان مسئولیت نیروهای هوایی و مدافعهء هوایی ولایت کندهار به وی سپرده شد.

۳. بعد از تصرف کابل پایتخت کشور در سال ۱۹۹٦م وی بحیث وزیر هوانوردی و سیاحت تعیین گردید.

٤. بر اساس هدایت و حکم خاص مرحوم امیر المومنین همزمان با وزارت، مسئولیت قوماندانی عمومی مدافعهء هوایی مربوط وزارت دفاع نیز به وی سپرده شد.

وی در ساحهء وزارت هوانوردی و توریزم فعالیت های زیاد عمرانی و بازسازی را انجام داد که مختصرا بعضی آن را یاد آور می شویم:

زمانی که شهر کابل در تصرف امارت اسلامی در آمد تأسیسات و ملکیت های مربوط به وزارت هوانوردی در این شهر به سبب جنگ های داخلی شدیدا متضرر شده بود.

منصور صاحب بر اساس خط مشی بازسازی خود طیاره های متضرر مربوط به این وزارت و میدان های هوایی را دوباره ترمیم و بازسازی نمود.

این زمانی بود که امارت اسلامی با مشکلات اقتصادی شدید و محدودیت های جهانی روبرو بود مگر منصور صاحب در همین شرائط نامناسب اقتصادی ابتدا میدان هوایی بین المللی کابل و همه تأسیسات مربوط آن را ترمیم کرد سپس خط بین المللی هوایی آریانا افغان را برای پرواز های داخلی و خارجی به ستندرد جهانی فعال و مجهز ساخت.

به تعقیب آن میدان های هوایی ولایات کندهار، هرات، ننگرهار، مزار شریف و کندز را برای هر نوع پروازهای ملکی و نظامی آماده ساخته و با وسایل پیشرفته مجهز ساخت.

علاوه بر خدمات بازسازی بخش های مختلف نظامی و ملکی امارت اسلامی، بزرگترین کارنامه وی این بود که بزرگترین سرمایه ملی افغانستان (نیروی هوایی) و طیاره های مربوط آن و اکثریت میدان های هوایی تخریب شده آن را آباد کرد.

علاوه بر ترمیم طیاره ها و میدان های هوایی، پرواز های شب و روز را در داخل افغانستان فعال و بعد از سالها توقف زمینه رفتن حج برای هزاران حاجی افغان را از طریق شرکت هوایی آریانا افغان مساعد ساخت.

افغانستان که زمانی به سطح منطقه نیروی دفاعی هوایی پیشرفته داشت نسبت اشغال روس ها و جنگ های تنظیمی تقریبا همه فلج گردیده و از کار افتاده بود، تا آنکه بعضی از طیاره ها پرزه شده و به نرخ آهن فروخته شده بود، مگر جناب منصور صاحب با تلاش های خسته ناپذیر خود طیاره های زمین نشسته را دوباره فعال و قابل استفاده ساخت.

محترم ملا اختر محمد منصور که در طول حاکمیت امارت اسلامی وزیر هوانوردی بود در زمان وزارت خود جهت احیاء و پیشبرد امور وزارت هوانوردی ملکی افغانستان خیلی سعی و تلاش کرده است.

می خواهیم به شکل مشت نمونهء خروار درینجا مختصرا از این تلاش ها یاد آور شویم:

جناب منصور صاحب بخاطر رهنمایی بهتر هوانوردی ملکی و پروازهای ترانزیتی سایر کشورها که از فضای افغانستان می گذشتند دستگاه (ویست) را در میدان های بین المللی مهم افغانستان مانند کابل، کندهار، ننگرهار، مزار و هرات جابجا کرد که اکنون نیز مردم شاهد آن اند، و در آن زمان ملیون ها دالر از درک تکس مرور طیاره های خارجی در بودجه افغانستان می آمد که تا کنون ادامه دارد. بر اساس یک راپور وزارت هوانوردی و مدافعه هوایی افغانستان در زمان وزارت منصور صاحب تقریبا ٤٤ طیاره های ترانسپورتی و هلیکوبتر های جنگی که در جریان جنگ متضرر شده بوده و از پرواز باز مانده بودند دوباره ترمیم و قابل استفاده برای هوانوردی ملکی و نیروهای هوایی گردیدند که تفصیل مختصر آن قرار ذیل است:

- ٤٤ طیاره های مختلف النوع که در زمان وزارت منصور صاحب دوباره ترمیم و بازسازی شد عبارت اند از: سه (N ۱۲)، چهار (N ۳۲) و دو (N ۲٦).

طیاره های جنگی: هشت جیت میگ ۲۱، سه جیت سو M٤۲۰، پنج جیت سو ۲۲.

هلیکوبتر: شش می ۸، هشت می ۳۵ و پنج ایل ۳۹.

علاوه بر این دو طیاره متعلق به ترانسپورت ملکی ساخت روس نوع ٤۱ و ان ۲٤.

و طیاره بوینگ امریکایی شرکت هوایی آریانا افغان را نیز در زمان وزارت خود در کشورهای خارجی ترمیم و قابل استفاده گردانیده بود.

و همچنان ٥ طیاره ترانسپورتی ساخت روس را از بازار آزاد خریداری کرده بود.

علاوه بر این طیاره های ترمیم شده و خریداری شده افغانستان در آن زمان دهها طیاره دیگر جنگی، ترانسپورتی و هلیکوبتر داشت که نقش یک نیروی کامل هوایی را ایفا می کرد و مثال بهترین فعالیت آنرا میتوان اکمال و کمک هوایی مستمر و دوامدار نیروهای محاصره شده مجاهدین در کندز و ساحات دور افتاده و خط های مقدم جبهه دانست. علاوه بر این پروازهای منظم و پیهم طیاره های مسافربری میان شهرهای بزرگ کشور و خارج از کشور بود. مگر با اشغال امریکایی و بمباردمان میدان های هوایی این سرمایه ملی همه تباه و از بین رفت.

محترم ملا اختر محمد منصور در زمان حاکمیت امارت اسلامی به سبب غداری جنرال مالک در شمال کشور بیشتر از شش ماه در اسارت ماند مگر بعدا به فضل خداوند متعال وقتی رها گردید که با برگشت جنرال دوستم، جنرال مالک از فاریاب فرار کرد و زمینه فرار زندانیان از محابس مساعد گردید.

**مقاومت مسلحانه علیه اشغال امریکایی:**

به تاریخ ۷ اکتوبر سال ۲۰۰۱ میلادی بعد از تجاوز امریکا بر افغانستان محترم منصور صاحب جهاد مسلحانه علیه آنان را آغاز کرد. این مرحله در زندگی جهادی محترم منصور صاحب برای وی مملوء از مشکلات شدید و چالش ها بود.

از جانب مرحوم امیرالمومنین علاوه بر عضویت شورای رهبری امارت اسلامی مسئولیت جهادی ولایت کندهار نیز به وی سپرده شد.

در این هنگام ولایت کندهار نیز مانند سایر ولایات افغانستان در جهاد علیه امریکایی ها به یک مسئول جهادی توانمند و ماهر نیاز داشت، زیرا که امریکایی ها همه پلان های جنگی خودرا به سطح تمام زون جنوب غرب از همین ولایت علیه مجاهدین طرح می کردند، و همین سبب بود که به سطح تمام زون بعد از ولایت هلمند عدهء زیادی از امریکایی ها، کانادایی ها و خارجی های اشغالگر دیگر در این ولایت جابجا شده بودند و بعد از بگرام بزرگترین پایگاه مرکزی خودرا نیز در میدان هوایی ولایت کندهار فعال کردند.

مگر منصور صاحب بنابر بصیرت جهادی خویش علیه همه خارجی های اشغالگر موجود در ولایت کندهار چنان برنامه های جهادی طرح کرد که جنرالان و ماهرین نظامی مشهور آنان از مبارزه با آن و جلوگیری آن عاجز بودند.

منصور صاحب با ابتکار جهادی خویش توانست که با مشوره و همکاری مسئولین جهادی ولایات همسایه پلان های جهادی خودرا به سطح همه حوزه جنوب غرب وسیع ساخته و علاوه بر کندهار در همسایگی آن در ارزگان،زابل و هلمند نیز اشغالگران صلیبی را با ضربات مرگبار مواجه سازد.

در سال های ۲۰۰۳م و ۲۰۰۸ میلادی دوبار شکستاندن خارق العاده محبس مرکزی ولایت کندهار به دست مجاهدین که در نتیجهء آن در هر دوبار تقریبا یک و نیم هزار مجاهد اسیر از اسارت رها گردیدند نیز در زمان مسئولیت منصور صاحب انجام یافت.

**بحیث نائب امارت اسلامی**

بعد از آنکه الحاج ملا عبید الله آخند معاون اسبق امارت اسلامی در سال ۲۰۰۷ میلادی اسیر گردید پس مرحوم امیر المومنین ملا اختر محمد منصور را همراه با محترم ملا برادر آخند معاون دیگر امارت اسلامی افغانستان به حیث معاون دوم امارت اسلامی تعیین کرد و وی را هدایت کرد که بنابر اهمیت خاص ولایت کندهار، رهبری آن ولایت را نیز بدوش گیرد و همزمان با معاونیت امارت اسلامی مسئولیت ولایت را نیز به پیش ببرد

در سال ۲۰۱۰م وقتی که یک معاون امارت اسلامی الحاج ملا عبید الله آخند در اسارت نیروهای پاکستانی به شهادت رسید و معاون دیگر آن ملا عبد الغنی برادردر شهر کراچی پاکستان توسط نیروهای مشترک امریکایی و پاکستانی اسیر گردید پس امیر المومنین ملا محمد عمر (مجاهد) محترم منصور صاحب را به صفت معاون امارت اسلامی و مسئول عمومی همه امور امارت اسلامی تعیین کرد.

این وقتی بود که ۳۰۰۰۰ نیروی اضافی توسط اوباما به افغانستان فرستاده شده بود و مقاومت جهادی در افغانستان با چالش های بزرگی مواجه بود زیرا که بیشتر از صدهزار نیروهای اشغالگر خارجی مجهز با پیشرفته ترین اسلحه در پهلوی ۳۵۰ هزار عساکر داخلی در هر گوشهء کشور در جنگ با مجاهدین قرار داشتند.

از یکسو بخاطر شرائط نهایت دشوار امنیتی ظاهر شدن ملا محمد عمر (مجاهد) امیر امارت اسلامی جهت رهبری مقاومت عسکری کار نا ممکن بشمار می رفت از سوی دیگر در جبهات جهادی خلای قیادت عسکری و اداری مسئله یی بود که پلهء مقاومت را بطور کامل بسوی دشمن سنگین ساخته بود.

علاوه بر فشارهای نظامی بر مجاهدین فشار های دیگر سیاسی و تبلیغاتی نیز از جانب دشمن زیاد شده

بود و تعداد زیادی از مسئولین جهادی در سنگر های مقاومت به شهادت رسیده بودند و عده زیادی از مسئولین بزرگ اسیر بودند.

در این چنین وضعیت حساس مسئولیت انسجام مجاهدین در مقابل صلیبی های اشغالگر از جانب مرحوم امیر المومنین ملا محمد عمر مجاهد به دوش محترم منصور صاحب انداخته شد و حتی معاون دیگر هم برایش تعیین نگردید.

محترم منصور صاحب عملا توانست که به نصرت الله تعالی و همکاری شورای رهبری آنرا در حساس ترین لحظات مقاومت طوری رهبری کند که مجاهدین هیچ نوع خلای عملی قیادت را احساس نکنند.

همین بود که سال ۲۰۱۰م برای نیروهای صلیبی در افغانستان به اعتراف خودشان خونین ترین سال بود و مجاهدین توانستند در این سال نسبت به هر وقت دیگر خیلی ضربات کاری و موثر بر دشمن وارد کنند و در نتیجه آن به اعتراف خود دشمن ۷۷۰ تن اشغالگر خارجی را به قتل برسانند.

به همین شکل مجاهدین به قیادت منصور صاحب توانستند که ساحات خیلی وسیع را از تصرف دشمن خارج و اداره منظم اسلامی را در آنجا به میان بیاورند.

بعد از وفات امیر المومنین ملا محمد عمر (مجاهد):

وقتی که مرحوم امیر المومنین در ۲۳ اپریل سال ۲۰۱۳م وفات کرد پس یک عده از اعضای شورای رهبری امارت اسلامی، علمای کرام، قاصد خاص مرحوم ملا محمد عمر مجاهد در جریان چهارده سال گذشته و دوستان دایمی وی که قبل از وفات همرای وی یکجا زندگی می کردند همه با منصور صاحب بیعت کردند و وی را بحیث امیر امارت اسلامی تعیین کردند.

اینکه سال ۲۰۱۳م سال اخیر مقابله و زورآزمایی میان اشغالگران صلیبی و مجاهدین مقاومت کننده علیه آنان بود پس بعضی از اعضای شورای رهبری امارت اسلامی و یکعده شیوخ و علمای کرام فیصله کردند که اکنون آخرین لحظات زورآزمایی اشغال صلیبی به رهبری امریکا است و سال سرنوشت ساز ۲۰۱۴م که اشغالگران آن را برای عقب نشینی نیروهای خود بحیث جدول زمانی تعین کرده بودند در پیشرو است پس بر اساس مصلحت جهادی و موافقه علمای کرام این بهتر خواهد بود که خبر وفات مرحوم امیر المومنین بجز به همین چند تن محدود به کس دیگر آشکار نگردد.

همان بود که این راز مهم به طور خیلی خارق العاده بر اساس مصلحت خاص جهادی تا به تاریخ ۳۰ جولای سال ۲۰۱۵ پنهان نگهداشته شد.

**بحیث امیر برگزیده شده امارت اسلامی**

وقتی که به تاریخ ۱٤ ماه شوال المکرم سال جاری ۱٤۳٦ هجری قمری که موافق بود با تاریخ ۳۰ جولای سال ۲۰۱۵ میلادی وفات مرحوم امیر المومنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله از جانب شورای رهبری امارت اسلامی اعلان گردید منصور صاحب جهت اطمئنان کامل مجاهدین اعضای شورای رهبری و علمای کرام را در ارتباط با سرنوشت شان و اختیار زعیم جدید اختیار داد و برایشان گفت که شما هر شخصی را که بحیث زعیم اختیار می کنید من به آن راضی و موافق هستم.

همان بود که اعضای شورای رهبری امارت اسلامی افغانستان بشمول مشائخ و علمای کرام در یک گردهمایی که از اعتبار اهل الحل والعقد برخوردار بود بعد از بحث های طولانی، سنجش مصلحت و مشوره ها و بدون حضور و موجودیت محترم منصور صاحب وی را بحیث امیر جدید تعیین کردند.

همزمان با تعیین محترم ملا اختر محمد (منصور) بحیث امیر امارت اسلامی، اعضای شورای امارت اسلامی، مسئولین همه کمیسیون های امارت اسلامی، مسئولین عمومی قضاء و محاکم، فرماندهان نظامی و مسئولین جهادی ۳٤ ولایت افغانستان، بزرگان کمیسیون های نظامی، شخصیت های علمی، ملی، جهادی، سیاسی و فرهنگی کشور و مسئولین همه نیروهای مسلح و ملکی امارت اسلامی همه با یک صدا بیعت خود با امیر جدید امارت اسلامی را اعلان کردند. بیعت های این همه جهت های نظامی و ملکی و شخصیت های ملی کشور به شکل

صوتی و تحریری به بخش نشراتی امارت اسلامی ارسال گردید که بعدا از جانب آنان در صفحهء مرکزی انترنتی الاماره نیز به نشر رسید.

**تقرری وی به حیث امیر جدید از نگاه شریعت**

علمای کرام و سیاست دانان اسلامی انتخاب توسط شوری یا اهل الحل والعقد را بهترین و درست ترین راه برای انتخاب زعیم در اسلام می دانند. اطلاق اهل الحل والعقد بر آن گروهی می شود که بر اشخاصی که دارای علم، تجربه و ذکاء باشند مشتمل باشد و معمولا بر آن اطلاق شوری می شود.

از روش های مختلف انتخاب خلفای راشدین عموما سه مرحله برای انتخاب زعیم از طریق شوری استنباط می گردد، که مرحلهء اول آن ترشیح، دوم انتخاب و سوم بیعت می باشد.

ترشیح یا نامزدی باید از جانب خود شخصی نباشد که زعیم تعیین می گردد زیرا که رسول الله صلی الله علیه وسلم می فرماید:

"إنا والله لا نولي هذا العمل أحدا سأله أو أحدا حرص عليه"متفق علیه) (اخرجه البخاری (۷۱۴۹) ومسلم (۱۷۳۳)

ترجمه: «سوگند به الله که ما این کار را به کسی نمی سپاریم که آنرا مطالبه کرده باشد و یا کسی که بر آن حرص کرده باشد».

پس ترشیح از جانب دیگر و یا از شخص می باشد مانند عمر فاروق رضی الله عنه که دست ابوبکر صدیق رضی الله عنه را گرفت و وی را برای زعامت پیش کرد سپس صحابه کرام وی را به حیث امام خود انتخاب کردند، و یا اشخاص زیادی ترشیح می گردند مانند اینکه عمر فاروق رضی الله عنه قبل از شهادت خویش چند تن از صحابه را به خلافت نامزد کرد و از میان آنان حضرت عثمان رضی الله عنه انتخاب گردید.

ملا اختر محمد منصور صاحب هرگز خودرا برای رهبری نامزد نکرده است، بلکه وی در اولین نشست نیز از جانب شورا بحیث یگانه کاندید نامزد گردید و در نشست دوم نیز صراحتا برای شوری گفت که من خواهان رهبری نیستم بلکه خواهش خدمت منحیث یک مامور را دارم، مگر شوری وی را بحیث یگانه شخص لایق زعامت نامزد کرد. بعد از بحث های طولانی، وی توسط همین شوری که مشتمل بر علمای کرام، شیوخ و اعضای شورای رهبری امارت اسلامی بود که همه صاحبان تجربهء علمی و جهادی اند بحیث زعیم انتخاب گردید و به تعقیب آن اول همه اعضای شوری همراه وی بیعت کردند سپس بعد از آن سایر مسئولین، مجاهدین عام و مومنان سلسله بیعت را با وی آغاز کردند.

به این شکل گفته می توانیم که انتخاب وی کاملا به طریقهء شرعی صورت گرفته است و به همین سبب از گوشه و کنار کشور علاوه بر صدها هزار مردمان دیگر، شیوخ قرآن و حدیث زعامت وی را قبول کرده، آنرا شرعی دانستند و با وی بیعت کردند.

**شخصیت قیادی وی:**

امیر المومنین ملا اختر محمد (منصور) زعیم جدید امارت اسلامی افغانستان، در اعضای تأسیسی امارت اسلامی یک شخصیت خیلی مدبر، موثر و مسلط پنداشته می شود.

نامبرده به شکل موهوبی از بعضی از مشخصات قیادت و رهبری برخوردار می باشد.

تقوی، اخلاص، بصیرت، درایت سیاسی و نظم اداری وی در عملی کردن امور از جمله مشخصات وی می باشد.

محترم ملا اختر محمد منصور صاحب در تنفیذ و تعقیب امور مربوط به فعالیت های جهادی امارت اسلامی نقش قدم رهنمای جهادی خویش مرحوم ملا محمد عمر مجاهد را تعقیب می کند، تحقق اهداف جهادی، استقلال کشور از اشغال خارجی و استحکام نظام شرعی در آن، از اهداف اساسی جهاد و مبارزه است، بر اساس "وأمرهم شوری بینهم" مشوره های سالم دوستان را در امور به غور می شنود، مسئولیت را به اهل کار می سپارد و بعد از سپردن مسئولیت بر وی اعتماد کامل می



کند، اشخاص مسئول را همیشه بر ترحم و تعاطف با مردم توصیه می کند.

بر این سخن خیلی ترکیز دارد که "امارت اسلامی خانهء مشترک تمامی افغان ها است پس به همین شکل باید همه خود را در آن مشاهده کنند".

**دیدگاه فکری و مذهبی او:**

محترم ملا اختر محمد منصور از لحاظ مذهبی تابع اهل سنت والجماعت ومقلد مذهب امام اعظم ابو حنیفه رحمه الله است.

به نزاکت وقت، زمان و جریانات سیاسی خوب بلد است.

در هنگام روبرو شدن با وی انسان میتواند سنجیدگی، وقار و متانت وی را به شکل خوب درک کند، سادگی و بی تکلفی از مشخصات ویژه زندگی وی است.

با مطالعه سیرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم وخلفای راشدین دلچسپی خاص دارد، هنگام روبرو شدن با مجاهدین همیشه در صدد شنیدن حالات و جریانات سنگرهای جهادی و وقایع عسکری می باشد.

با وجود همه مصروفیات جهادی و اداری خویش رسانه ها را به دقت تعقیب می کند، نویسندگان جهادی و کارمندان فرهنگی و نشراتی امارت اسلامی را در فعالیت های نشریاتی شان مشوره های خاص داده و توصیه های ویژه می نماید.

**مصروفیت های روزانه وبرخی از مشخصات خصوص زندگی وی:**

محترم منصور صاحب زندگی روزانه خویش را با تلاوت قرآن کریم آغاز می کند، با جبهات جهادی و مسئولین نظامی همیشه در تماس می باشد، پلان گذاری نظامی بر دشمن را شخصا از نظر می گذراند و بر مسئولین جهادی جهت حفاظت جان و مال مردم ملکی و برخورد نیک با آنان تاکید زیاد می کند.

وی به حیث یک فرمانده مسلط نظامی با دوستان جهادی خویش، مجاهدین سنگر و مردم عام رفتار محترمانه و مهربان می کند، در مجالس احترام خاص برای شخصیت و سخنان علما، استادان و بزرگان قایل است، بر خانواده های شهداء و سرپرستی ایتام آنان توجه خاص دارد، در امور سیاسی از احتیاط زیاد کار می گیرد و در ارتباط با آن نظر دوستان اهل رای را نیز مطالبه می کند.

در نشان زدن با تفنگ محبت خاص دارد، عملی کردن تمرین های جهادی را مناسب ترین ریاضت (سپورت) وقت می داند.

خود خیلی کم صحبت می کند مگر از دیگران زیاد می شنود، لباس های پاک و طویل می پوشد، در خوراک، پوشاک و نیازمندی های دیگر زندگی از اصراف و تبذیر کردن نفرت میکند.

اساسی ترین مشغله زندگی اش تنظیم امور جهادی و تعقیب جدی آن می باشد، و در همین تنظیم وتعقیب روز را شام می گرداند.



# ستا...!

## په دې ویاړلو کارنامو تاریخ ځلاند اوسه!!

ظهیر

په رښتیا هم په داسې وخت کې دامیر المؤمنین ملامحمد عمر مجاهد رَحِمَهُ‌ٱللَّٰهُ وفات او نړۍ نه درحلت غمېزه رامنځته کېدل چې د طاغوت لښکرې په شکست خوړلې روحیه له هېواده دوتو په حال کې دې یوه جېبرانیدونکې ضایعه او ستر زیان دی! الله جَلَّ‌جَلَالُهُ دې مجاهدینو،علماوو او طالبانو ته ددې ستر غم په اړه دصبر زغم او استقامت مورال وبښي !

ملا محمد عمر مجاهدچې دناهیلیو اوقحط الرجال په اوسني وخت کې کوم کارونه ترسره کړل، کومې کارنامې یې وکړې او یا له ځا ن وروسته یې ملګرو ،مجاهدینو او مسلمانانو ته د اسوه حسنه کوم میراث پرېښود واقعاً که هغه دمسلمانانو په لنډه ماضي کې نادر ندی! عدیم النظیر ضرور دی! داسلامي هېوادو دچارواکو مجرمانه کردارونه او دهغوی اسلام ضد کړنې له چا پټې ندې، چې دخپلو ولسونو او خلکو په مقابل کې دامریکایي ګټو وټوساتوندیان دي! خومرحوم ملاصاحب بیا یواځینی مشر اوزعیم و چې ورته دملت ازادې، استقلال، سوکالې او داسلامي شریعت نفاذ یې دژوند هدف اونصب العین و.

ځنګه چې په اسلامي هېوادو زیاتره حکومتونه له بیرونه تپل شوي، چې هیڅ ډول ازادې نلري! اونه پخپله خوښه دپرېکړو او ارادو واک لري، دامریکا او لویدیځ ترتاثیر او فشار لاندې چارې پرمخ وړې، دخپلو هېوادونو دداړضي سالمیت پرځای دامریکا دسالمیت لپاره کار کوي ځکه دامریکا د څارګرو ادارو له لوري دهمدې لپاره واک ته رسول شوي دي، چې هغوی به پخپل هېواد کې به دامریکا ګټې له خطر څخه ژغوري او ننګه او دفاع به یې کوي، همدا وجه ده چې نن داسلامي نړۍ د ۵۵ هېوادو د واکمنو او پاچایانو له منځه یو هم دامریکا یې ښکېلاک دغلامۍ څخه ازاد ندی پخپله دافغانستان اوسنی تپل شوی حکومت ، ولسمشر او حاکم وضعیت را واخلئ! دهوښیار انسان دپوهې لپاره خو همدا بس دی، چې امریکا دخپلو استعماري ګټو دخوندیتابه لپاره زمونږ لکونه هېوادوال په سرو ینو کې ولمبول او لا لمبوي یې!ددې لپاره کله دنانځکې پشان کرزی په څوکۍ کینوي او کله عبد الله او اشرف غني! او دخپلو شیطاني ارا دو دسرته رسولو لپاره یې کله په یو عنوان اوکله په بل نوم استخداموي.په لنډه به دا ووایم چې په ټولو اسلامي هېوادو کې مسلمانان خپل واک حکومتونه نلري، بلکې ځیني یې نیمه خپلواک دي چې نیمی له بیرونه تپل شوي چې هغوی دترقۍ، دخوشالی او سوکالی لپاره په خلاص مټ کار نشي کولی بلکې ورته ټول پلانونه امریکا یې بادران جوړوي، دغه وجه ده چې مسلمان ولسونه او پرګنې تربشپړ اختناق لاندې ژوندتیرولو او د پردیو موخو لپاره دوسپنې نینو چېچلو ته اړدي...

که حاکم او واکمن په توګه داروانښاد امیر المؤمنین د کردار او کارنامو واقعبینانه ارزونه وکړو! دتعصب ،کینې، رخې او عقدې پرته یې وڅیړو ، نوله کومې مبالغې پرته

نوموړی یو واقعي خپلواک او ازاد مسلمان واکمن و چې پخپلو پریکړو او ارادو کې د ازاد دریځ څښتن و، دهیڅا درعب او تاثیر لاندې نه و، دخپل هېواد ،خپل ولس او خپل دین علیا مصالحو دفاع ته په کلکه توګه ژمن و! دژوند تر وروستیو سلګیو پورې له اسلامي مسیر او هدف نه په شانشو، دخپل واک، سلطنت او قدرت غځولو تږی نه و، ولې که وای نود قدرت ددوام لپاره به یې خامخا په پټه یا ښکاره معامله کړېوه، څنګ چې دنورې اسلامي نړۍ واکمن د حکومتونو د دوام لپاره پټې او ښکاره معاملې کوي...! ملاصاحب خپل ټول قدرت ته لغته ورکړه خو داسلامیت او افغانیت په اصولو او اقدارو یې سودا ونکړه د سختیو او ستونزو ګاللو ته یې غاړه کیښوده خو دا امریکا کبرجن غرور ته سلامي نشو بلکې دامریکا کبر او غرو ر یې له خاورو سره ګډ کړ

هو! ملا محمد عمر مجاهدد ملي او دیني ارزښتونو ساتنه اوننګه وکړه، په دې لاره کې یې دقربانۍ ورکولو نوي مثالونه وړاندې کړل، دافغان ولس دملي او اسلامي غیرت شمله هسکه یې وساتله، استعمارته یې سرټیټې ونکړه اونه دهغه دمادي او سیاسي دبدبې له امله له خپل هدف تیرشو په قوي ایمان او پولادې عزم دژوند ترپایه دهغه په مقابل کې دجهاد او ازادۍ له مسیره په بله روان شو.

د اسلامي شریعت نفاذ او په اسلامي حکمونو پخپله عمل کول او په ټولنه دهغو پلی کول دنوموړي دمبارزې اساسي محور و، په دې لاره کې ورته ادنی درجه غفلت یاتسامح هم دزغم وړنه وه او نه یې په دې کې دکوم ملامت ګر دملامتیا پروا درلوده.له زړه نه داسلامي شریعت او اسلامي قانون عملي نفاذ ته ژمن و او دخپلې واکمنۍ په دوره کې یې په ښه بریالیتوب سره خپل دا ارمان پوره کړ.

دامریکا په مشرۍ دپنځوسو هېوادو له شیطاني او کفري لښکرو سره په میړانه جنګیدل اوپه نتیجه کې یې امریکاته شکست ورکول هغه کارنامه ده، چې له امله یې نړیوال تاریخ بدل شو، هغه امریکا چې ویل به یې:نړۍ نور یوهېواد اویو مملکت ګرځیدلې، په دې وجه ورته یو قانون اویو دفاعي او امنیتي ځواک پکاردی، بېلابیلو قوانینو او دامنیتي او دفاعي ارګانو جوړولوته اړتیا نشته ، او ددوی پوځ دنړۍ په هره برخه او هرکونج کې په ظرف دڅو دقیقو کې خپل دښمن په نښه کولی شي او هم هلته یې ځپلی شي، نوبناءً نړیوال دې امریکا یې قوانین اومني او دامریکا یې پوځ په وړاندې دې سلامي شي اوکه هرڅوک ددینه سرغړونه کوي دوی به هغه هېواد ځپي او ورباندې طوعاً او کرهاً به دامریکا دنړیوالتوب اجندا عملي کوي، ملا محمد عمر دنړۍ دیو ډېر غریب اوبیرته پاته هېواد دمشر په حیث دامریکا دا نړیواله برتري وننګوله امریکا له هغه نه دشیخ اسامه بن لادن رَحِمَهُ ٱللَّهُ دورسپارلوغوښتنه وکړه، نوموړي ورته په ځواب کې ویلي: که شیخ اسامه په رښتیا هم مجرم وي راشئ ! دلته دافغاني او اسلامي قوانینو په رڼا کې دافغانستان ستري محکمې ته عریضه وړاندې کړئ که دمحکمې لخوا هغه مجرم ثابت شو مونږ تیاریو چې هغه محاکمه کړو! کنه ددینه پرته مونږ څنګه هغه تاسو ته دروسپارو چې لا کومې محکمې هغه تورن کړی ندی؟ لیکن امریکا چې دخپل نړیوالتوب غرور په نیلي سوره وه، دافغانستان ستري محکمې ته رجوع خپل اهانت ګاڼه، او دا غوښتنه یې ردکړه او په افغانستان یې دتاریخ ترټولو ظالمانه او وحشیانه یرغل وکړ، اسلامي حکومت یې ړنګ کړ، په ځای یې یوغلام او کفري رژیم رامنځته کړ، مشر ملا صاحب په دې سره له خپلې مبارزې په شانشو بلکې په وړاندې یې دجهاد او مقاومت بیرغ رپاند کړ، په لږه موده

کې ټول هېوادته یې جهاد پراخ کړ، امریکایانو او دهغوی ګوډاګیانو ته یې تاریخي شکستونه ورکړل چې په پایله کې یې نن امریکا دسولې ډنډوره غږوي کله په یوه پلمه ځان له افغانستان وباسي او کله په بله بهانه غواړي ځان دجګړې نه بیرون کړي، نن هغه ددوه زره یو کال امریکا نده پاتــه، نه یې هغه نړیوال موقف او دبدبه شـته او نـه پـه نـړۍ دخپل راج پلي کولو خوبویني.

امیر المؤمنین پخپل شخصي ژوند کې هـم سـپیڅلی انسان و، نوموړي دنړۍ دنـورو پاچایـانو پشـان عیـاش اوفحاش سړی نه و، دکاملې تقوا او دینداری نه برخمن و، ساده اوپاک ژوند یې درلود، پخپلو شخصي کـارونو کـې دبیت المال له لګولو یې ډډه کوله، هم دا راز پـه حکـومتي څوکیو او پوستونو دخپلې کورنۍ دوګړو کینولو مخـالف و، لنډه داچې دخدای نـه ډار لرونکـی واکمـن و چـې پـه معاصره نړۍ کې دومره له خدایه ډاریدونکی مشر اواکمـن بل نه و.

حقیقت دادی چې د حضرت عمربن الخطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اوحضرت عمربن عبد العزیز رَحِمَهُ اللَّهُ نه وروسته په اسلامي تاریخ کې نوموړی دریم عمر دی چې دواکمن په حیث یې له ځان وروسته یې ښه روښانه او ځلاند تاریخ پریښود!

دمجاهدینو دبري وروسته چې کلـه پـه افغانسـتان دملوک الطوایفۍ راج راغی، په هر ولایت اوهره ولسوالۍ کې څو ګوني حکومتونه جوړشول، هر ټوپک سالار دخپلې سیمې بې تاجه پاچاهۍ په تخت کیناسـت، الهـي قـوانین معطل شول بې امنې بـد اخلاقـې او بـې نظمـې اوج تـه ورسیده، پرضد یې نوموړی دڅـو ملګرو پـه ملتیـا کـې شرعي پاڅون وکړ! او په ډېر لنډ وخت کـې دهغـه حالـت دمنځه وړلو لپاره یې دهېواد دیني طالبان او علماء رابیدار او منظم کړل او پخپل تندریز پاڅون یې دشر اوفساد ځالي داسې ونړولې چې دهېواد ۹۵ سلنه خاوره یې دهغوی دشر څخه وژغورله.

چې پکې سملاسې امنیت راغی اسلامي شریعت پلـی شو، اویو هېواد شموله حکومـت او اداره رامنځتـه شـوه، خلکـو دډاډ او اطمینـان سـاه واخیسـته اسـلامي حـدود نافذشول، دامر بالمعروف نهی عن المنکر په اسلامي وجیبه عمل پیل شو ، دافغانستان ارضي او جغرافیوي تمامیت له تجزیې وژغورل شو، دافغانانو ترمنځـو دسـمتي، لسـاني اوقومي تربګنیو بل اورونه ووژل شول دهېـواد دسـوکالۍ اوترقۍ لپاره ګړندۍ هڅې پیل شوې، تیر شاندار افغـاني برم بیا را ژوندی شو،مخلص او دیانت لورونکي اشخاص په حکومتي پوستونو او وزارتونوړ کې وګومـارل شـول اخلاقي انارشیزم له بیخ او ریښو پورې وایستل شو، خـو دنړۍ کفري ځواکونو ته دا کارنـامې او لاسـته راوړنـې د زغملو او منلـو نـه وې ، هغـوی چـې دکمونسـتي رژیـم وروسته دافغانستان په اړه کوم منحـوس پلانونـه وضـعه کړي وو، هغه یو، یو په نطفه کې خنثاشول افغـان ولـس بیا د خپل تیر عظمت منبرته وخوت نـو دمختلفـو حیلـو اوبهانو په جوړولو یې یرغل وکـړ افغـان ولـس یـې پـه دازمایښتونو، سـتونزو او مشـکلاتو مرګـوني ګـرداب تـه وغورځاو.نن هر دویښ ضمیر لرونکـی انسـان پـه رڼـو سترګو ویني هره ورځ پـه افغـان ولـس قیامـت تیریـږي! امریکایان سلګونه معصوم انسانان وژني افغانستان عمـلاً دامریکایې بیرغ لاندې مستعمره او غلام هېواد ګرځیـدلی ولسي وګړي دهیڅ امریکـایې پـه وړانـدې لـه بشـري او حقوقي پلوه عظمت نلـري او آن لـه انسـاني کرامـت نـه محروم ګرځول شوي دي!

داچې نن دامریکا دتیري په مقابل کې پرته له ځنډ او وقفې څخه جهاددوام لري داد دنوموړي د مدابرانه قیادت

او میراني مرهون منت دی چې امریکایانوتــه افغانــانو دهغوی دسرونو په کوپړیو کې اوبه ورکړې او هره ورځ له بگرام اوکندهار نه دتابوتوڅخه ډکـې الـوتکې امریکاتـه دپوځیانو مړي انتقــالوي! د سـلکونوزره امریکایـانو وژل کیدل او قوي اقتصادي ټکانونه خوړل هغه ستره ډا لـۍ ده چې امریکا دافغانستان په جگړه کې ترلاسه کړه تـردې چې د یو لوی شمېر امریکا یې کومندو عسکرو دمړو پـه لیدلو دا وباما په ستر گو کې هم اوښکې راغلي چـې پـه نړیواله میډیا یې انځورونه خپاره شول! دا ټـول دامریکـا په اړه دا حقیقت برسیره کوي چې په نیږدې راتلونکي کې دامریکا هم هغه حشر کېدونکی دی کـوم لـه املـه چـې دزوال کندې ته ټیل وهل شو

له شک پرته دافغانستان ټول تاریخ د علماوو، طالبانو او مسلمانانو له سرښندنو او قربانیو ډک دی ، هر کله چې هم دبهرنیو یرغلگرو له لوري په افغانستان تیر شـوی دی، دهېواد علماء طالبان او عام مسلمانان یې پـه مقابـل کـې سپر شوي او هغوی یې تیښتې ته اړیستلي، وروسـته واک تل دداسې خلکو لاسوته ورغلی دی چې هغـوی تـه دملـت دگټو په مقابل کې بـه خپلـې شخصيـ گټـې مهمـې وي ، داسلامي نظام راوستو په اړه یـې مخلصـانه گامونـه نـه اخستل ددې اساسي عامل دا و چې دینـي قشرـ( عالمـان، طالبان او مجاهدین) منظم او را ټول نه ول، منظمـه اداره اوټولنه یې نه لرله د اروابښاد امیر المؤمنین دا کارنامه چې دیني لوری یې په یومرکزیت راټول او منظم کړ او له ځان وروسته یې یوه ښه فعاله سیاسي ، پوځي ، اقتصـادي او فرهنگي اداره پریښوده چې ټولې چارې پـه ښـه تـدبیر او عقلمندۍ سره رهبري کوي دا یې دهېواد په راتلونکو دیني نسلونوداسې لویه پیرزوینه ده چې د سروزرو پـه اوبـو دلیکلو وړده نن چې له کندهاره تربدخشـانه دینـي قشرـ متحد اویو دی دادنوموړي دسـیاسي بصـیرت او فراسـت زیږنده کارنامه ده الله جَلَّجَلَالُهُ دې وکـړې چـې ترپیړیـو پیړیو دا اروابښاد دغه جاریه حسنات دوام پیدا کړي، ددې لپاره چې مرحوم دهېـواد دعلـماوو طالبـانو اومجاهـدینو لپاره ډېر درووند او له وقاره ډک تاریخ پریښود دنومـوړي ارواته دیو وتلي شاعر یوه شاعرانه نذرانه ډالۍ کوم :

**ای دېرگنـو لارښـوده! تـل دې تـوغ رپانداوسـه**
**سـتا داننگیـالي دمقـدس مـرام تپانـد اوسـه**

**تلـلي دتـاریخ ویـده یادونـه دې بیـا پـاڅول**
**نیل دې دسرو وینـو هرفرعـون تـه څپانـد اوسـه**

**شوریې دگوربت چې په اسـیا غلبلـې گـډې کـړې**
**ونو دځنگلونو کې دې زلمي ښـاخونه تانـد اوسـه**

**پورتـه هـوتکۍ ولـولې، ښـکته دجـمال پیغـام**
**وړي یې چې هریرود اوکونړی بهاند- بهاند اوسـه**

**پیـل پـای دهـرې پیـړۍ ځانتـه رنگینـه کـړه**
**ستا په دې ویـاړلو کارنـامو تـاریخ ځلانـد اوسـه**

**رب کـړه درکـې عـام د[رحـماء بیـنهم] مـرام**
**هریونـاخبره هرناگـار دومـره زړه سوانداوسـه**

# لنډ تاريخي حقايق

(شيخ الحديث اسحاقزی)

که چيرې سړی وګورې او متوجه شې نوهر ملت او ټولنه تاريخې پيښې لرې، اصلاً خو د تاريخ اجمالې معنې د تيرو پيښو څيړنې او د هغو څخه د خبريدلو په معنې سره ده ، او ز مونږ افغانی ټولنه د خپل (۵۰۰۰) کلن تاريخ په اوږدوکښې تر بلې هرې ټولنې دپيښو په لحاظ سره ډيره بډايه ده.

ډير وړاندې به نه ځو، کله چې زه (دالله بنده) د خپل ژوند په کوائفو سره پوه شوم نو د مدنې زده کړی تر څنګ مې د دينې زده کړې سره په ډير شوق سره مينه پيدا شوه،څرنګه چې زما ژوند له شروع څخه پر کليوالې اډانه او د ټولنې نسبتاً په منځنې درجه کې وؤ، لاکن ددينې علوموله اړخه يوه بډايه کورنې وه نو ځکه زما لپاره هم دا لا مل و ګرځيده چې د خپلې ټولنې د ورځنې ماحول څخه باخبره واوسم، زما په ياد دې کله چې په کليوالو سيمو کی تقريبا د راډيو درلودل يوامتياز او غو را وې وو، نومونږ هم يوه راډيو درلوده او ما به هم د هغې خبرونوته غوږنيوه، او دماخوستن خبرونه به مې اوريدل . اغلباً ۴۱ او ۴۲ ام شمسې هجری کلونه وه، نو کله چې به دشپې له طرفه پښتو خبرونه ختم شوه نو دملی ترانې تر نشروروسته به د راډيو دنطاق پواسطه داسې اعلان کيده چې پاچا دملې استقلال ساتونکي او د لويو ديموکراتيکو نهضتونو کومک کونکي دي .

(پادشاه حامی استقلال ملی و پشتبان نهضتهای بزرګ ديموکراتيک درکشوراست)، خو خدای شته چې زما په زړه کې به داسې راغله چې کاشکی ئی ويلای چې پادچا داسلامي افکارو د خپرونکو ملاتړ دي .

خوحقيقت بل څه وؤ او هغه دا چې دا شعارنه بلکه دا د افغانستان د وخت د قانون اساسې يوه ماده وه نو که دې ته ځير شو نو معلومه خبره ده چې دفغانې تولنې د وخت اساسې قانون هم پرغير شرعي او غير اسلامي اصولو باندې جوړشوی يو قانون وؤ، د اولس واک او اراده په عام ډول پر ملوک الطويفي سيستم باندې د مفسيدو خاينانو او زورمندانو پواسطه غصب شوې وه. او دملکانو په واسطه حتی د پاچا لپاره د مبالغي او افترا څخه ډک داسې تبليغات کيدل چې پادشاه دالله ولی او شرعی اوللا امر دي ، او دهغه په مقابل کې آواز اوچتول جرم څه فاعل ئی داعدام مستحق ګڼل کيده، دا ځکه چې مذهبي، سياسې،عسکري ټولې کړی هم په پاچا پورې تړلې وې،او د ټولنې هغه برخه چې ناتوانه اوغريبه وه له هر څه څخه محرومه او بې برخې وه .

په افغانې ټولنه کې دتعليم او تربيې وده ډيره ورو وه . او ملت خو د فقر او بې سوادي په توره شپه کې ويده او آرام کاوه.

په ټولنه کې عصري او مدنې تعليم په خارجې کړيو پورې تړلې وو، دملکی تعليم وده تر څه اندازې غربي سيستم او دملک عسکري تعليم بيا په شرق (شوروی اودهغه انډيوالان) ټيکه داران وه نوځکه ځوان تعليم يافته برخه پر دوو متضادو برخو تقسيم وه . دغرب تعليم يافته خوفقط دعيش اوعشرت

او د ژوند څخه د خونداخیستلو څخه داسلامي افکارو څخه محروم او دشرق څخه فارغ شوې بې عقیدي خلک خو ددین دډولومعنوي او ظاهری اړخونو پرضد اوغریب ولس ته ئې ددي پاچاهي نظام نیمګړتیاوې په ګوته کولې او غریب ولس ته داجتمایی عدالت شین چراغ ښول کیده چې ورو ورو ئی د فعالیت لمنه پراخه شوه، حتی چې د ښوونې او روزنې په برخه کې ېې پوره لاسته راوړنه نصیب شوه.

او په غرب کې روزل شوې لنډه غرو خو بیا د ښځو ازادي او د هغوې د حقوقو فحشا او بې حیا یې ته ددي سرطانې مرض ریښې و ځغلولې، او با لا خره په افغانې ټولنه کې پر اداری فساد سر بیره علناً جلوسونواو مظاهروته لاره برانسته اود بې تجربې او نیم رسو ځوانانو څخه ئې په استفادې سره ټولنه دپردې پرستې خواته وهڅوله ، اود ټولنې وګړې هم دشاهې مطلق العنان رژیم څخه ستړې او ماړه سوی وه .

هم هغه وو چې دشاهې کورنې دیوه غړي پواسطه (سردارمحمدداودخان ) تر مشری لاندې د شوپره دې پالوافسرانو پواسطه د پاچا په نه موجودیت کې کو دتاه وشوه او ظاهراً شاهې رژیم دچپ لاسوافسرانو په واسطه په جمهوري رژیم بدل شو .

اوعلناً د مسلمانانو او اسلام د سرخوړی سبب شو، اومسلمانان پریشان او دالحادي اوکفرې مفکورې لپاره فعالیتونه په ښکاره سره شروع شول ، ظاهراً د جمهوریت په نامه خوپه حقیقت کې د شوروی پراختیا غوښتونکې مفکورې داشاعت لپاره شوروی مشاورین په هوائې، مدافع هوائې اومځکنې عسکری تربیوی مؤسسو کې وګمارل شول .

نوځکه دوهمې کو دتا ته لاره برابره او مساعده شوه، او داود پخپله یوجاهل، خودخواه اوسرتمبه او د اسلامي مفکورې نه ډیر لیرې انسان وؤ، داود هغه وخت پوه شو چې دده قوت په ټولنه کې فقط سمبولیکه بڼه لرل ، اونور هیڅ ورپاتې نه وه.

اودده سره په لمړي وار کودتا کونکو د دوهمې کو دتا تجربه وآزمایل، دده اودده دجمهوریت دمنځه تلو سبب شوه، دولتې او د ټولنې ټول اساسې ریفورمونو ته (۱۸۰) درجې تغیر ورکړل شو، او په ټولنه کې داوښتون منفې تحول دخلکودعقیدو اوعنعنومخالفت خوځښت خپل اوج ته ورسید هرڅه د څومحدودو فرمانو پواسطه بدل او د ظلم ( تعدی )بربریت نوي تیاری دافغانستان ټوله فضا وپوښله، په ټولنه کې هغه قشراو ډله چې داسلامي شریعت زړه سوي ورسره وو، مخفې، اویا له وطنه څخه وتښتیدل او ټول اجرائیوی قدرت د جبراو ستم له لاری پر ټولنه حاکم شو .

اودټولنې تعلیم اوپوه برخه، چې د نوې بدلون سره ئې مفکوري اړخ نه درلود، له منځه یووړل شول، ګرچې په عسکرې قواوو او جزوتامونو کې څه متفرق حرکتونه وشول، خو ناکامه او له منځه یووړل شوه، دارنګه ویښ او وطن پرست علما، متنفذین او هر هغه څوک چې دنوی رژیم سره ئې اړخ نه لګاوه له پښو وغورځول شول، سربیره پردې چې نوي اوښتون دافغانې ټولنې دزیربنا د لمنځه تللوسبب ګرزیده بلګه دافغانستان د ګاوندیوهیوادونوته مستقیم خطرمتوجه وو.

څرنګه چې په ایران کې د خمینی په رهبری شاهې رژیم له منځه ولاړ، او زوړ ایرانې رژیم په امریکا یې اداری پورې تړلې رژیم وو، نوایران خود امریکا سره د مخالفت په لحاظ یو قوې کومکې ته ضرورت درلود(یعنې شوروی اتحادسره)، نوهغه هم بیله شورو ي اتحادڅخه د دوستې بله لاره نه درلوده، نو ایران خو څه ناڅه دامریکاپه مقابل کې مطمئن وو، مګر پاکستان د شور وې اتحاد تر مستقیمې خطرې لاندې داسې یو ملک وو، چه په هر دول سره چه وې د شوروې اتحاد د پرمختک مخه ونیسې او په خارجې سطحه کې د امریکا و کمک ته تر هر چا ډیر زیات محتاج وو، ځکه چې شورې د وخت هیو لا او د هغه دقوت په مقابل کې خو ودریدل د ځان وژنې په معنې سره وو، نو ځکه د پاکستان لپاره دشوروې ناسور په مقابل کې یوازې او یوازې افغانان د جنګ او مدافعی



لپاره بهترین انتخاب وو، او دا دجنګ دانډول لپاره ډېر ښه انتخاب ځکه کیداې شو چې افغانان خو له خپل ملک څخه د ځانونو د تحفظ لپاره په کمه اندازه سره په پاکستان کې میشت شوې وه او ددوې لپاره د محاربوې زده کړې په شمول لوژستیکې، صحې دترانسپورتې وسایلو حربې وسائلو ډېر مبرم ضرورت احساسیده او دا یوازې او یوازې د یو داسې ملک لپاره لکه پاکستان هم نا شونې کار بلل کیده،نو که د خپلې لیکنې یوبل اړخ ته ورشو نوهغه په افغانستان کې دنوي اوښتون واکدارانو پخپلومنځونو کې بې باورې او یو پر بل باندې تفوق طلبې ددي سبب شوه چې د دوې په اصطلاح سره حزب دموکراتیک خلق پر دوو برخو وویشل شې، چې همداسې وشول د خلق جناح دپرچم پر جناح باندې غالبه شوه او دوې ئې دقدرت له صحنی څخه لیرې کړل ، زما ښه یاد دی چې د پرچم د ډلې زیاد غړې دپلچرخې نا ولی او بدنام زندان ته راوستل شول چې زه هم هلته په اول بلاک او دریم پوړې کې محبوس وم او دا دجوزا میاشت چې د ۱۳۵۷ هـ ش کال د اوړې میاشت وه، دپرچم داړخ ټول غړې په صفت د بندیانو راوستل شول ، خو لیکن د شورویانو دسپارش له وجهې له مرګ نه محفوظ پاته شول ، چې دا د دوې خوش چانسې وه، یوکال وروسته بیا خپله دخلقیانو په اړخ کې بې اتفاقې را منځته شوه، او د امین او ترکی تر منځ اختلاف پیدا شو، چې دا اختلاف دترکی په مرګ سره پای ته ورسیدی او امین پر سر د قدرت شو، دلته دافغانستان خلګو د خلاصون لاره لټوله او بیله هجرت څخه دځان د خوندې توب نورڅه نه وه پاتې، نوهغه وو دشوروې سور ښامار په حرکت راغی او امین او امینیان ئې تر ستونې تیر کړل، پدې وخت کې دټول افغانستان ټول وګړی په دې ښه پوه شول چې بې له هجرت څخه د خلاصون بله لار نشته نوهغه وه چې په زیاته اندازه افغانان پا کستان او یوڅه هم ایران ته مهاجرشول، حقیقتا پاکستانې اولس خپلو مسلمانو، قومې، ژبنې او د یو فرهنګ او کلچر ورونو ته دمینې ورورولی غیږه پرانسته او بیله کوم جلا والی تر نن پورې پاکستان د افغانانو دوهم کور شوه، په خارجې برخه کې بیله ګاونډیو څخه د دنیا ټولوملکونو افغانستان د شوروې په خیټه کې یوهضم شوی ملک باله، حتی ځینې په اصطلاح اسلامي ملکونوخود شوروې اشغال ته مشروعیت هم ورکاوه، ځکه دا اشغال ئې د بین المللی پرولتاریا مشروع حق ګانه، لکه ننی صلیبي اشغال ته دتروریزم تر نامی لاندې مشروعیت ورکوی، (عاذنا الله من دالک) حتی په ځنې عربی ملکو نوکې د افغانستان جهاد ته د مشرکینواو شورویانو تر منځ جنګ ویل کیده، او د افغانستان خلک د هغوې دمفکورې پر بنیاد بدعتیان او مشرک معلومیدل ،اود شوروې اشغالګرو ځواکونو تر اشغال وروروسته کله چې دځینو عربی ملکونوځوانان افغانستان ته د جهاد لپاره راغله او عملاً ئې دافغانانو جهاد ولیده، نو ورته ثابته شوه چې دا په حقیقې معنی سره جهاد او د اسلامي امت د دفاع مسئله ده،نو ځکه عربی مسلمان ځوانان دخپلې عقیدې او ایمان له وجهې او دې پاک او مقدس عمل ته داخل او نوروته د تشویق سبب وګرزیدل .

اصلی موضوع ته به راشو لکه چې مخکې مو وویل ، دافغانانو ددې بد حالت شاهد ټول دنیا شوه اودهر طرف څخه د انسانې خوا خوږې پر بنیاد باندې د افغان ځوریدلې،

کړیدلې او بې سر پناه مهاجرینو لپاره څه ناڅه کومکونه وکړل، او ګاونډي هیواد (پاکستانی) اولس دې درانده بار او پیتې ته شا ولګوله او هر ملک او د دنیا ولسونو د افغان مهاجر ولس سره د خپل نیت پر بنیاد د کومک سر شوراوه، او په ټولوافغان مهاجرینوکې خپل وطن ته د تګ او د وطن د آزادی مینه او جزبه مو جوده شول، او په رښتیا سره دالله په لاره کې قربانې ته حاضر شول، خولیکن افسوس (سل ځله افسوس) چې ددې سترمهاجر او جهادی بهیر په تر تیب ، نظم ، ترغیب او دیو موټې کولو په لاره کې له بې غوري څخه کار واخیستل شو، اوداسې خود خواه ،جاه طلبو ، بې تجربې چې د ټولنې دیوځای والی پر ځای ئې ځان ځانې ، او دبې اتفاقې او رته لمن ووهله اوافغان میړني مهاجر ولس ئې پر ځومتضادو ډلوتقسیم او وویشه، تاریخې تریخ حقیقت دادی چې دافغان میړني ولس د بدبختې لمړنې لامل شاهی بیا د داود کودتاه، بیا د خلق پرچم مزدوری ډلګیو ګودتاه او ترټولو د لویې بدبختې لامل دمجاهدینو اومهاجرینو ویشل په ډلوټپلو باندې ، او د مهاجرینو په منځ کې د بې اتفاقې سو زونکې اور بل کی او تر ننه پورې د دې بربادونکې مهلک طاعون اودخلاصون لاره ورکه کړه اوتر نن پورې افغان ولس مخ پر کښته او دهالاکت کندې ته ور روان دی .

دډلواوټپلو په منځ کې حتی تر دې اندازې ورسیده چې یوی ډلې دبلې ډلې په مقابل کې نشراتې جنګونه شروع شوه، حتی د نشراتو له لارې یو پر بل د تکفیر فتواګانې ورکړې ، او دا مخالفتونه وداخل دافغانستان ته د مسلحو ګروپونوپه منځ کې د یو او بل دوژلو سبب وګرځیده، او همدارنګه په داخل د افغانستان کې که یوطرف د شورویانو او دهغوې د ظلم او ستم افغانانوته د زغملو نه وو او بل طرف ته هم تنظیمې او ګروپې جنګونه اویو پر بل تعرضونه افغانان د خپلو مینو و پریښودلوته مجبور کړل، دې وضیعت دافغانستان په داخل اوګاونډې هیوادو نو باالخصوص هغه مهاجرین چې په پاکستان کې اوسیدل خونړی نښتې اومرګونه دمهاجرینو په منځ کې چې یو مثال ئې د صوابی د کمپ غیر مشروع جنګونه دی، د هرې ډلې سره د اسلامي اوغیر اسلامي ملکونولخوا د خوراکې ، لوژستکی، نقدې او د وسلو مرستې په هر نیت او مقصد چې وی ، د هری ډلې او تنظیم ته به مسلسل ډول دهغوې دکمیت په نظر کې نیولو سره ورکول کیدل، او دډلومشرانو ته د کوربه له اړخه هغه امتیازونه ورکړه شوې وه چې د خپل ملک د ډیرولو یو چارواکو په تصرف کې نه وه، د مثال په ډول د محافظت لپاره د دوې دغوښتنې سره سم د سلاح او مهماتواو نور اعزازی امتیازونه خوځه کوی، خوافسوس چې د دوې دنړی په سطحه امتیاز ډیریدی هم هومره د دوی بې اتفاقې، خود خواهې ورسره ډیریده آن چې کوښښ وشو او دوې ئې دمځکې پرمخ تر ټولومتبرک او سپیڅلی مکان (بیت الله الحرام ) کې د اتفاق ورور ولی خواته را و بلل او هم هلته ئې یووالی ته متعهد کړل ، ولیکن ترپخوا هم ومنفې اړخ ته ولاړل، همدغه رنګه په بهرکې د حکومت اداري تشکیلات ورته برابر شول ، اود هر چاونډه اودنده هم معلومه شوه، خوبیا هم دتوافق پرځای اختلاف ته ترجیح ورکړل شوه، اوله وطن څخه بهر جوړې شوې سمبولیک حکومت چې ټول امکانات ورته د جنت په ډول بیله تکلیفه څخه ئې په اختیارکې وه، ورکړه شویوه.

خوبیاهم د دوی غوښتنې په مطلق ډول د هوااوهوس پر بنیاد وې ته دیوخاص مفکوري اواسلامي عقیدې پربنیاد، دافغان دخاوری ازادې او د دښمن شړل دټول ملت که په خارج اویا داخل کې وه دخپلو بې مثاله قربانیوپه نتیجه شاته نه تلونکې سور قطبی خرس زخمی ده وطنه شرمیدلې ووتل،اوالله رب العزت ئی (۷۰) کلنه شاته نه تلونکې دکتاتوری داسې دړی وړی کړه ، چې د یوی پیړۍ څخه مځکنې جغرافیه هم ور پاتې نشوه، اونړۍ ټوله دقطبی خرسانو له ویري د افغان نومیالیو په سر ښندنې خلاصه اوهوسا شوه،خو بیا وروسته د سره استعمار بقایا د حکومت په نامه پاتې او مقاومت ئې وکړ.

چې د دوې دبقاعمده علت د ډلوپه منځ کې بې اتفاقی او ځان ځانې ددې سبب شوه ،. چې دوې کمزوری اود دوی نا اهلی دحکومتد اری په باره کې د ټولې دنیا، ګاونډیانو اوافغان ولس ته معلومه شوه، نوبیا ځکه دوې په داخل کې په غیر مشروعه طریقو سره دالله او دهغه رسول او دولس قاتلانو سره د ائتلافونو دلارې غوښتل چې خپلې مقصدی واکداری ته ځانونه ورسوی، بل سترلامل د ولس د بې مثاله قربانیو د ضائع کیدلو تعدد د احزابو د یوبل د وینو تویول او د مهاجرو اومجاهدینوحقوق تر پښو لاندې کول اوظلم بربریت قطاع الطریق (پاتک سالاری وه) اود ملک په هره برخه کې چې څوک واک من هم هغه څوک دهغه ځای بې تاج اوتخته باچاوو، دا هغه وخت ووچې لمړی تا مشروع ائتلاف د نجیب د ډلې دوزیر دفاع او دهغه د انډیوالانو سره وشو ، اود تنی کودتاه تر ناکامیدو وروسته چه دنجیب په مقابل کې وه. په داخل کې د نورو قدرت منو ډلو سره د داسې نا مشروع اوله اسلامي اوجهادي اصولو مخالف دائتلافونو سلسله شروع شوه،او دقدرت ته رسیدل او د هغه قبضه ورځنې معمول و ګرزیده، دا رنګه هغه ډلې چې د نجیب په حکومت کې مسئولې او غیر مسئولې ډلې وي،دهغوې ائتلافونه او یاد قوم په نامه د نووتنظیمو جوړول شروع شول، اوقوم پرستې د خپلوګټود ساتلو پخاطر خپل آخری منزل ته ورسیدل، د نجیب پردی پاله اداره د ړنګیدو وحالت ته نژدی شوه ، دا په داسې حال که وه چې دا خلی ائتلافونه چه اکثره او یا په بشپړه ډول د نجیب د اداری واک د هغوې سره وو، دنجیب داداری د سقوط اصلی لامل شول، او پر ټولودولتې امکاناتوئې قبضې ولګولی اودنجیب اداره له منځه ولاړه او د افغانستان شمال ختیزه برخه داربکې چاپ اندازانو اودهغوې د مؤتلفینولاسته ولویده، داغه رنګ د افغانستان شمال غرب د بلې ډلې سره مقبوض شو،

اوجنوب غرب اوجنوب شرق هم د مختلفو ډلوتر ائتلافی اویا هم هر ولایت دهغه محلی واکدار له طرفه اداره کیده.

په ګاونډې هیواد پاکستان کې دنوی موقتې حکومت په نامه اداره جوړه اوکابل ته نقل مکان شوه، پدې وخت کې کله چې دصبغت الله د دوه میاشتنې مشری تر سیوري لاندې موقتې اداره کابل ته نقل شوه نوسیالی ډلې دکابل علاقه داری د جنوب له خواځخه خپل قوتونه د چهار آسیاب دلارې د کابل د نیولولپاره ولیږل پدې قوتونوکې مسلح اوغیر مسلح خلک چې اکثره دلیسودلوړوصنفونو متعلمین وه داخل کړل څرنګه چې سیالوډلو وړاندې له وړاندې نه دکابل ټولې حکومتې اداری دخپلوائتلافی کمونستیانواربکې انډیوالانو پواسطه قبضه کړی وی ، نوپر کابل سیاله متعرضه ډله شاتګ ته د تلفاتو په لیدلوسره شاته شوه، اودا هغه وخت ووچې نور دکابل دړنګیدلووخت را ورسیده، او پدې لس کلنه خپل منځې جګړه کې تر (۵۰۰۰۰) پنځوس زره زیاتې ککری ورژیدلی اودکابل زوړ ښار جنوب شرق په کنډواله بدل شو، چې دهغه ویرانونکې خونړې بې ګټې نامرادی جګړه څه ناڅه اوس هم د کابل پر شور بازار پاتې او ښکاره دی ،اوکابل د پنځوډلوترمنځ ویشل شوی ښاروو . دی ورانکاری اوبدبختې تر لسو کالو زیات وخت ونیوه په دی لسو کالو کې چې څومره مصلحینوعلمانو او دافغانستان خواخوږو دجوړی کوښښونه وکړل خومثبته نتیجه ترې راونه وته ، او ورانونکی جګړې ورځ تر بلې زور اخیسته ، بالا خره د جنګ دوام ددی باعث شو چې د پنځودلوځخه دوه متضاد ائتلافه جوړشې، یو طرف ته دری ډلې او دبل طرف ته دوه ډلې، یو له بل سره په جګړه لګیاوی ، دغه رنګه د کابل په پرتله د ولایاتو حالات دجنګ له نقطه نظره ساده وه.

خوبیا په ولایاتوکې مطلق دمحلې قدرت زورمندان حاکمان اوپرلویولارو غلاوی، قطاع الطریقی، پاټکونه له شمیر څخه زیاد موجود وه اود مسلحو ګروپونود ژوند معشیت هم ددی لارې پوره کیده، او څه ناڅه خارجې استخباراتې کمپنیو هم د هغوې په تمویل کې د خپل راتلونکو ګټو په خاطر لاس وهنه کوله ، که د لوستونکو یاد وي

پـدې وخـت کـې د شـوروې دهوائې تاړاک ددفعې په خاطر څه راکټونه چې د اوږی څخه به پیرکیدل د وخت دمقاومت وډلو ته ورکـړه شـوی وه اوهغه ورکـــونکې ملــک چـــې ددی راکټونوشتون دخپـل راتلـونکې پـلان اواشـغال لپـاره گـواښ گانـه نودهغـه راگټونو(سټنگر) درا نیولـو پروسـه ئـې پـرلاره واچوله چې حتـی د یـو راکـت (سټنگر) خرڅ څه کم تـر یولک ډالـرو پـورې ورسـیدل او ددې مـوثری سـلاح دشـتون څخـه افغانســـتان پـــاک اوخـــالې شـوداکار دهغـه شـوم مطلب لپاره وو چې پـه راتلـونکې کـې دهـیڅ متعرضـی قـوت لپـاره سرخوږی نه وې چې دهغوډلو د سر گروپـانو لپـاره چـې د وطـن دتاریخ په ورانولو کې ئې برخه واخیسته یونه بخښـونکې جـرم اوجنایت دی ځکه چې دجهاد له امکاناتوځخه په خپله شخصې گټه کار اخیستل په امانت کې خیانت اوپه شرعی اصطلاح کې غلول چې د قیامت په ورځ به د دی نـاوړه حـرام کـار عامـل تـه شرمـــونکې جـــزا ورکـــول کیږی. اعوذ باالله من ذلک.

نوربیا...

# دیوبند یا دیـوبنـدیان

عبید الرحمن عابد حنفی

دیوبندې هغه چاته ویل کېږي، چي له دار العلوم دیوبند څخه یي د تحصیل فراغـت سـوی وي، او یا د دوئ له افکارو او نظریاتو سره تعلق او تړاو لري.

د دیوبندیت لپاره داشرط نه دی چي خامخا به یي له دغه مدرسي څخه د تحصیل سند ترلاسه کـړی وي، بلـکي پـه هرځـای کي چـي اهـل حـق وي هغـه تـه دیوبنـدې ویـل کېـدلای سي .

دار العلوم دیوبند په اوس عصر کي په ټول عالم اسلام کي یوممتازه اوعالي مدرسه بلـل کېـږي، او د ټول اهل اسلام لپاره د دیني علومو یومنبع اوسرچینه بلل کېږي، د عـالم پـه ټولـو اطرافـو کي د دې علوم نشر سوی دی، او په هرځای کي مسلمانان له دې څخه فیضان حاصلوي.

له دې مدرسي څخه داسي علماء وتلي دي، چـي د هغـوئ علمـي او عملـي فائدي او روحـاني فیضانات ټول عالم اسلام ته رسیدلي دي، په دیني علوموکي د دوئ تصانیف او تالیفات په ټوله نړۍ کي خپرسوي دي، لکه حکیم الامت مولانا اشرف علي تهانوي صاحب مولانا شاه انورشاه کشمیري صاحب، مولانا شبیر احمد عثماني علامه ظفر احمد عثماني، د پاکسـتان مفتـي اعظم مفتـي محمـد شفیع دیوبندې، مولانا شمس الحق افغانی، مولانا محمد یوسف بنوري او داسي نور ډېرعلماء چـي دوئ د ټولو نقلي او عقلي علومو جامع وو, او د دوئ په مناقبو کي مستقلي رسـالي او کتابونـه لیکـل سوي دي .

د دیوبندیانو اجمالي عقائد

دیوبندیان په عقیده کي ماتریدیه دي .

په فروعو کي د حنفي مذهب مقلد دی، خو د عامو احنافو په نسبت د توحید په بـاره کي لـږ سخت دی، د بریلویت غوندي بدعاتو او افراطاتو څخه لیري او گوښه دي .

د اولیاوو کرامت مني، په دوعاکي په انبیاوو، اولیاوو، صالحینو او شهداوو سره کـه ژونـدي وي که له مرگه وروسته توسل جائز بولي,دقبرونو زیارت کول پر شرعی طریقه جـائز بـولي,مگر براه راست له یوولي یاصالح څخه حاجت غوښتل یا هغه عالم الغیب بلل یا لـه الله بغیـر د بـل چـا پرنامه نذر ښوول پرقبرونو شمع لگول یا طواف کول شرك او بدعت بولي، د شریعـت لـه اصـولو سره سم تصوف او طریقت مني ، او د تصوف څلور مشهوري طریقي نقشبندیه، چشتیه، قادریـه، سهرودیه، هم مني د دیوبند اکثره علماء د روحاني مسلك په لحاظ د حاجي امداد الله مکي کوم چي له دغو څلورو طریقو څخه منسلك وو په حلقه کي داخل دي.

د دار العلوم دیوبند بنیاد پر۱۵ محرم ۱۲۸۳ هـ کي د هند له پایتخـت ډیـلي څخـه تقریبـا ۱۵۰ کیلو متره لري، د دیوبند په نامه په یوه علاقه کي په یوپخواني مسجد کي یومشهور عالم مولانا قاسم نانوتوي، (۱۲۴۸هـ) (۱۸۳۲ء) (۱۲۹۷هـ) (۱۸۸۰ء) دیو څو علماوو په مشوره سره کښـي ښـووی .

او د دې مدرسي اول مدرس محمود دیوبندي وو، او اول طالب یي محمود حسن د یوبندي وو، اول رئیس یي مولانا قاسم نانوتوي وو، مولانا محمد قاسم نانوتوي د شاولي الله دهلوي په درو واسـطو سره شاگرد کېږي.

اود دار العلوم د نوي عمارت د بنیاد خښـته د مولانـا احمـد علـي سـهارنپوري پـه لاس کښـي ښوول سوه.... نور بیا....

# له امام أعظم أبوحنيفه رحمه الله نه روايات

## قاري حکيم الله صابري

دا په یاد ولری چې حدیث په بنیادی طور سره له دوه شیانو نه لاس ته راځی چې اول یې سند او دوهم یې متن ده.

د رُواة او رجال هغه سلسله چې حدیث متن ته رسوی د سند په نامه یادیږی ، له سند نه وروسته کلام د متن په نامه یادیږی.

مثلا په صحیح البخاری، کتاب الایمان کی یو حدیث ده چې:

حدثنا أبو اليمان قال أخبرنا شعيب قال حدثنا أبـو الزنـاد عن الأعرج عن أبى هريرة رضى الله عنـه أن رسـول الله صـلى الله عليه وسلم قال: فوالذى نفسى بيده لا يؤمن أحـدكم حتـى أكون أحب اليه من والده و ولده.

په پورتني حدیث کی له حدثنا أبو اليمان نه نیولی تر رسول الله صلی الله علیه وسلم پوری سند ده او له دي وړاندي له فوالذی نفسی بیده نه تر اخره پوری د حدیث متن ده.

په حدیث کی سند بی حده زیات ضروري ده. امام محمد بن سیرین رحمة الله علیه وایی: ان هذا العلم دیـن، فـانظروا عمـن تأخذون دیـنکم. یعنی بی شکه چې دا علم الحدیث دین ده، نو وګوره چې ته له چانه دین حاصلوی (مسلم، مقدمة الصحیح، ۱: ۱۴).

امـام سفیان ثـوری رحمـة الله علیـه وایـی: الاسناد سلاح المؤمن، اذا لم یکن معه سلاح، فبأی شیء یقاتل. یعنی اسناد د مومن اسلحه ده، نو کله چې له ده سره اسلحه نه وی نو په څه شی به جنګ کـوی (سمعانی، أدب الاملاء والاستملاء، ۱: ۸ / ذهبی، سیر اعلام النبلاء ۷: ۲۷۳).

امام عبدالله بن مبارک رحمة الله علیه وایی: الاسـناد مـن الدين ولو لا الاسناد لقـال مـن شـاء ماشـاء. (مسـلم، مقدمـة الصحيح، ۱: ۱۵).

سند بیا په دوه ډوله ده یو ته عالی او بل ته نازل وایی:

عـالی سند هغـه سند تـه وایی چې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ته نیژدی وی او د راویانو تعداد یی په سند کی کم وی.

نازل سند هغه سند ته وایی چې حضرت محمد صلی الله عیه وسلم نه لري وی او د راویانو تعداد یی به سند کی زیات وی.

د مثال لپاره به د بخاری او مسلم یو حدیث ذکر کړم چې یو حدیث مختلفو راویانو په لنډ او لري طریقه روایت کړیده.

امام بخاری رحمة الله علیه لیکی :

حدثنا ابو الوليد قال حدثنا شعبة قال اخبرنى عبدالله بـن عبدالله بن جبر قال سمعت أنسـا عـن النبـى صـلى الله عليـه وسلم قـال: آيـة الايـمان حـب الانصـار و آيـة النفـاق بغض الانصار.

امام مسلم رحمة الله لیکی :

حدثنا يحيى بن حبيب الحارثى حدثنا خالـد يعنـى ابـن الحارث حدثنا شعبة عن عبدالله بـن عبـدالله عـن انـس عـن النبى صلى الله عليه وسلم انه قال: حب الانصار آية الايمان و بغضهم آية النفاق.

په دواړو روایاتو کی فرمان یو ده خو د امام بخاری شریف حدیث ته عالی وایی ځکه چې په سند کی یی راویان څلور دی او

د مسلم شریف حدیث ته نازل وایی ځکه چې په سند کې یې راویان پنځه دي.

عالي سند بیا دري درجي لري:

اول: وُحدان / احادیات: په کوم سند کې چې د راوي او رسول الله صلی الله علیه وسلم ترمنځ یو صحابي وي.

دوهم: ثنائیات: په کوم سند کې چې د راوي او رسول الله صلی الله علیه وسلم ترمنځ صحابي او تابعي وي یعني دوه راویان موجود وي.

دریم: ثلاثیات: په کوم سند کې چې د راوي او رسول الله صلی الله علیه وسلم ترمنځ صحابي، تابعي او تبع تابعي یعني دري راویان وي.

د محدثینو په نزد له ټولو نه عالي سند اسانید ثلاثیات دي. د علم حدیث په دنیا کې یوائې او یوائې امام مالک سره ثنایات شته. نور ټول څومره چې محدثین دي او ددوی کتابونه دي عالي سند له دوی سره ثلاثیات دي. که په لنډو درته ووایم امام شافعي، امام احمد بن حنبل، امام بخاري، امام مسلم، امام ترمذي، امام ابوداؤد، امام نسائي، امام ابن ماجه، امام ابوداؤد الطیالسي، امام عبد بن حمید، امام دارمي او امام طبراني دي ټولو سره عالي سند چې موجود ده هغه ثلاثیات دي. نو په دي ټولو محدثینو کې امام مالک رحمة الله علیه ته دا فوقیت حاصل ده چې ده سره ثنائیات شته.

اوس به راشم دیته چې امام اعظم ابوحنیفة رحمة الله علیه عالي سند احادي ده، سبحان الله د ځمکي په سر بل داسي محدث نشته چې له ده سره احادي سند موجود وي. دا فخر او اعزاز یوائې امام ابوحنیفة رحمة الله علیه ته الله جل جلاله ورکړیده.

امام جلال الدین سیوطي رحمة الله علیه او امام ابن حجر هیتمي رحمة الله علیه په دي باندي تحقیق کړیده او د امام اعظم ابوحنیفة رحمة الله علیه ۷ احادیات یې په خپلو کتابونو کې لیکلي دي چې مستقیما یې له صحابه کرامو رض نه روایت کړیده. خو نورو علماء کرامو چې بیا په دي مسئله باندي تحقیق کړیده نو ۱۶ احادیات یې پیدا کړیدي. چې زه به یې د نموني په ډول دري څلور داني درته ولیکم:

۱- روی أبوحنیفة قال سمعت أنس بن مالک رض یقول: سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول: طلب العلم فریضة علی کل مسلم. (ابونعیم اصبهانی، مسند الامام ابوحنیفة: ۱٦۷/ خطیب بغدادی، تاریخ بغداد، ۴: ۲۰۸ / موفق، مناقب الامام الاعظم ابی حنیفة ۱: ۲۸).

۲-روی ابوحنیفة عن انس بن مالک رض عن النبی صلی الله علیه وسلم انه قال: الدال علی الخیر کفاعله. (خوارزمی، جامع المسانید للامام ابی حنیفة، ۱: ۸۵ / صیمری، اخبار ابی حنیفة و اصحابه: ۴ / موفق، مناقب الامام الاعظم ابی حنیفة، ۱: ۳٦).

.۳روی ابوحنیفة عن انس بن مالک رض عن النبی صلی الله علیه وسلم انه قال: ان الله یحب اغاثة اللهفان (خوارزمی، جامع المسانید للامام ابی حنیفة، ۱: ۸۵).

.٤روی ابوحنیفة قال سمعت انس بن مالک رض قال سمعت النبی صلی الله علیه وسلم یقول: من تفقه فی دین الله کفاه الله همه و رزقه من حیث لایحتسب. (قزوینی، التدوین فی اخبار قزوین، ۳: ۲٦۱).

د صحابه کرامو په باره کې محدثین او اصولیین په دي باندي اجماع کړیده چې صحابه ټول عدول وه او په دوی کې هیڅ مجروح او ضعیف نشته: ان الصحابة کلهم عدول لیس فیهم مجروح ولاضعیف. (ابن حبان، الصحیح، ۱: ۱٦۲/ ابن عبدالبر، التمهید، ۲۲: ۴۷/ عسقلانی، فتح الباری، ۹: ٦۳۳).

دا ۱۶ روایات نورو محدثینو هم په خپلو کتابونو کی په خپلو خپلو سندونو سره ذکر کړیدی. نو له دینه هم معلومیږی چی د امام اعظم رحمة الله علیه احادی احادیث ټول صحیح دی، دی ضعیف الحدیث نه وه بلکه صحیح الاسناد وه، ثقه وه، عدول وه، مامون وه، اصح وه او اوثق وه په هغه وخت کی چی امام صاحب دا حدیث را ټول کړی وه د نورو امامانو حتی تولد هم نه وه شوی.

همدارنګه د امام اعظم رحمة الله علیه نه لاندی دری کتابونو ۵۰۶ ثنایات روایت کړیدی.

جامع المسانید للامام خوارزمی: ۳۶۶، کتاب الآثار للامام أبی یوسف: ۸۱، کتاب الآثار للامام محمد الشیبانی: ۵۹.

د مثال په طور: روی ابوحنیفة عن ابی الزبیر عن جابربن عبدالله قال: قرأ رسول الله صلی الله علیه وسلم قوله تعالی: (وصدق الحسنی) قال: بلا اله الا الله (وکذب بالحسنی) قال: بلا اله الا الله. (خوارزمی، جامع الاسانید للامام ابی حنیفة، ۱: ۹۵). دا حدیث بخاری هم په کتاب الایمان کی په خپل سند سره روایت کړیده.

همدارنګه لکه نورو امامانو نه چی ثلاثیات روایت دی، امام اعظم رحمة الله علیه نه هم ثلاثیات روایت دی کوم چی په ټول امامانو کی ډیر دی. په لاندی دری کتابونو کی له امام اعظم صاحب نه ۱۱۲۶ ثلاثیات روایت دی.

اول: جامع المسانید للامام الخوارزمی: ۶۷۷، کتاب الآثار للامام ابی یوسف: ۲۵۱، کتاب الآثار للامام محمد الشیبانی: ۱۹۸].

د مثال په طور: روی ابوحنیفة عن عقلمة بن مرثد عن ابن بریدة الاسلمی عن ابیه قال: کنا جلوسا عند رسول الله صلی الله علیه وسلم فقال: اذهبوا بنا نعود جارنا هذا الیهودی، قال: فاتیناه، فقال: کیف انت؟ وکیف؟ فساله ثم قال: یا فلان، اشهد ان لا اله الا الله، و انی رسول الله، فنظر الرجل الی ابیه وکان عند راسه، فلم یرده علیه شیئا، فسکت، فقال: یا فلان اشهد ان لا اله الا الله، وانی رسول الله، فنظر الرجل الی ابیه فلم یکلمه، فسکت، ثم قال: یا فلان، اشهد ان لا اله الا الله، وانی رسول الله، فقال له ابوه: اشهد له، فقال: اشهد ان لا اله الا الله، و انک رسول الله، فقال رسول الله صلی الله علیه وسلم: الحمد الله الذی اعتق بی نسمة من النار. (محمد الشیبانی، کتاب الاثار: ۷۷، رقم ۳۷۵ / ابن السنی، عمل الیوم واللیلة، ۱: ۵۰۴ / حصکفی، مسند الامام الاعظم: ۷) دا حدیث بخاری شریف هم په کتاب الجنائز کی ذکر کړیده.

همدارنګه امام اعظم ابوحنیفة رحمة الله علیه له ۴۰۰۰ استادانو نه حدیث حاصل کړیدي. دا تعداد امام موفق بن احمد المکی په مناقب الامام ابی حنیفة، امام خوارزمی په جامع المسانید او امام کردری په مناقب الامام ابی حنیفة، صالحی په عقود الجمان او ابن حجر عسقلانی په الخیرات الحسان کی لیکلی دی. (موفق، مناقب الامام الاعظم ابی حنیفة، ۱: ۳۸) (ابن بزاز کردری، مناقب الامام الاعظم ابی حنیفة، ۱: ۶۸) (خوارزمی، جامع المسانید، ۱: ۳۲) صالحی، عقود الجمان، ۶۳) (ابن حجر المکی، الخیرات الحسان: ۳۶).

د امام اعظم رحمه الله ۱۲۵ استادان د صحاح سته رجال دی.

امام بخاری رحمة الله علیه په علم کی د امام اعظم رحمة الله علیه په دوه طریقو سره کړوسی ده. اول: الامام البخاری عن والده اسماعیل بن ابراهیم عن عبدالله بن المبارک عن الامام الاعظم. دوهم: الامام البخاری عن والده اسماعیل بن ابراهیم عن حماد بن زید عن الامام الاعظم. امام عسقلانی صاحب د امام بخاری رحمة الله علیه د پلار په باره کی وایی: روی عن حماد بن زید و ابن المبارک (عسقلانی، تهذیب التهذیب، ۱: ۲۴۰).

همدارنګه امام قسطلانی هم وایی: اسماعیل بن ابراهیم بن المغیرة سمع من مالک و حماد بن زید و صحب ابن المبارک

(قسطلانی، ارشاد الساری لشرح صحیح البخاری، ۱: ۳۱) همدارنګه امام بخاری رحمة الله علیه پخپله دا تائیدوی چی دده پلار له امام حماد بن زید او امام عبدالله بن مبارک سره کتلي. (بخاری، التاریخ الکبیر، ۱: ۳۴۲) په بل ځای کی امام بخاری صیب د امام عظم صیب رحمة الله علیه په باره کی لیکی: نعمان بن ثابت ابوحنیفه الکوفی: روی عنه: ابن المبارک. (بخاری، التاریخ الکبیر، ۸: ۸۱).

امام بخاری رحمة الله غیر د پلار له طریقی د امام اعظم په علمی لمسیانو کی راځی ځکه چی ده له مکی بن ابراهیم رحمه الله نه روایت کړیدی او مکی بن ابراهیم رحمه الله د امام اعظم صیب شاګرد وه. په دی باره کی امام ذهبی رحمه الله وایی: حدث عن جعفر الصادق و ابی حنیفة، وعنه البخاری و احمد. (ذهبی، تذکرة الحفاظ، ۱: ۳۶۵) په بل ځای کی امام ذهبی او امام قسطلانی د امام بخاری صیب په باره کی وایی: سمع ببلخ من مکی بن ابراهیم. (ذهبی، تذکرة الحفاظ، ۲: ۵۵۵ / قسطلانی، ارشاد الساری لشرح صحیح البخاری، ۱: ۳۲) په همدی شکل امام بخاری صیب د الضحاک بن مخلد، ابی عبدالله الانصاری، ابی عبدالرحمان المقری، عبیدالله بن موسی، الفضل بن دکین کوم چی د امام اعظم صیب شاګردان دی حدیث روایت کړیدی.

د امام بخاری رحمه الله عالی سند د ثلاثی په نامه یادیږی او ټول ۲۲ احادیث دی. دا ۲۲ احادیث امام بخاری رحمه الله له ۵ راویانو نه روایت کړیدی چی څلور یی د امام اعظم رحمه الله شاګردان دی. هغه څلور شاګردن عبارت دی له:

• امام مکی بن ابراهیم چی ۱۱ ثلاثیات ترینه روایت دی. مکی صیب د امام احمد بن حنبل او امام بخاری صیب شیخ ده کوم چی د امام اعظم رحمه الله شاګرد ده.

• امام ابوعاصم ضحاک بن مخلد النبیل چی ۶ ثلاثیات ترینه روایت دی. دی د صحاح سته د ټولو کتابونو راوی ده، دی هم د امام بخاری صیب شیخ ده او د امام اعظم صیب شاګرد ده.

• امام محمد بن عبدالله انصاری نه ۳ ثلاثیات روایت دی، دی هم د ټولو صحاح سته کتابونو راوی ده.

• امام خلاد بن یحی د ۱ ثلاثی راوی ده، چی له دی سره ۲۱ ثلاثی د امام صاحب له څلورو شاګردانو نه روایت کیږی.

پاتي یوه ثلاثی امام بخاری صاحب له خپل یو بل شیخ نه چی عصام بن خالد رحمه الله نومیږی روایت کوی.

## دلړم طبیعت چیچل دي او زما طبیعت مینه

یو حکیم د نهر په غاړه د سوچ فکر په حالت کی ناست وه چی ناسافه یو لړم اوبو ته ولوید او دځان دخلاصون کوشش یی کوه ، نو حکیم لاس وړاندی کړه چی لړم دغرقیدونه بچ کړی نو لړم وچیچه، د درد دقلاریدو نه روسته یی بیا لاس ور وړاندی کړه چی لړم ته نجات ورکړی خو لړم بیا وچیچه، ددریم ځل لپاره یی بیا دلړم دخلاصون اراده وکړه نو یو سړی چی د دی حکیم خواته ناست وه د دی ټولو حالاتو دلیدونه روسته یی منع کړه چی لړم دی چیچي او ته یی دخلاصون کوشش کوی، خو حکیم د دغی سړی په خبره څه پروا ونکړه تر دی چی لړم ته نجات ورکړه.

بیا روسته دسړی خواته راغی او ورته یی وویل: دلړم طبیعت چیچل دی او زما طبیعت مینه او رحمت دی نو ته ولی د لړم طبیعت زما په طبیعت غالبوی.

په ځنی وختونو کی دخلکو سره دخپل طبیعت مطابق معامله وکړه او دهغوی طبیعتونو ته مه ګوره هرڅومره چی دهغوی تصرفات تا دردمند کوی.

الله تعالی فرمایی:...(ادفع باللتی هی احسن...) چا چی درسره بد کول ته ورسره خه کوه، پدی کار سره به دی دشمن هم دوست وګرځی.

# احساسات که غیرت؟

احمدالله احمدزی

ظهیرالدین بابر د هندوستان مشهور واکمن و او په خپل ژوند کې یې ډېرې فتحې کړې وې، خو وايي، د ژوند ټولې فتحې یې یو پلو او دوه پېښې بل خوا.

یوه ورځ له خپل دښمن سره د مذاکراتو لپاره میدان ته راته، نو دی په جلدي خارښ اخته و. له جلدي خارښ سره مقابله امکان نه لري، سړی به خامخا خپل ځان ګروي، درمل خوري، ځان به په مناسبو شیانو غوړوي او تر ډېره به خپل بدن هم لوخ ساتي، مګر ظهیرالدین بابر، چې خپل مخالف سره مجلس کې کېناست، نو پر غوړ بدن یې د ململ ټوټه پرته وه، څلور ساعته یې خپل مخالف سره بحث وکړ او تر پایه یې خپل ځان ونه ګراوه. که فکر وکړو، نو دا کار ډېر ناشونی دی، چې سړی دې په داسې سخته ناروغۍ اخته وي او دی دې خپل ځان کنټرول کړای شي.

د بابر بله فتحه دا وه، چې دی یوه ورځ د ځنګل زمریانو ګیر کړی و، مګر ده د زمریانو په خوله کې خپل همت ونه بایله او تر پایه یې په حکمت ورسره مبارزه وکړه، تر دې، چې دی د زمریانو له پنجو ژوندی راووت.

ظهیرالدین بابر د خپل ژوند ټولې فتحې یو پلو او دا دوه پېښې بل پلو تر ټولو مهمې بولي.

د چینايي کمونېستانو پلار ماوزو ډونګ هېڅکله په پردۍ ژبه خبرې نه دي کړي، نه یې پردي مصنوعات کارولي او هېڅکله یې داسې کومې ټوکې ته نه دي خندلي، چې په پردۍ ژبه وه. دا طبعي خبره ده، چې هېڅوک هم ټوکې ته خوله نه شي ټینګولی خامخا به خاندي، مګر ماوزو ډونګ هېڅکله په اجنبي ژبه شوې ټوکې ته نه دي خندلي، مګر همدا ټوکه به که چینايي ژبې واړول شوه، نو بیا به یې په کړس کړس وخندل.

یو وار د امریکا ولسمشر رچرډ نیکس چین ته ولاړ، نو ماوزو ډونګ سره د ناستې پر مهال دی ډېر سخت هک حیران شو، چې د نوموړي په کتابتون کې یې امریکا کې چاپ شوي کتابونه ولیدل.

ماوزو ډونګ نه یوازې دا، چې دغه انګریزي کتابونه یې ټول لوستي وو، بلکې حاشیې یې هم پرې لیکلې وې.

کوریا سره د جګړې پر مهال د ماو زوی وژل شوی و، مګر ده ته یې چې د زوی مړی راغی، نو ده هېڅ زړه ونه غورځاوه، نه یې رنګ بدل شو او نه یې وژړل.

ده وویل، چې زه په دې غم کې یوازې نه یم، زما ټول ولس له ما سره دی.

ده وویل، چې د ولس هر ځوان د ده زوی دی او دی د خپل نسلي زوی او ولس هېڅ توپیر نه شي کولای.

د هند د ازادۍ پلار ګاندي ته یوه ورځ د ښوونځي زده کوونکي راغلل او یو هلک ورته وویل، چې مور یې خیاطه ده او د ده لپاره به پرې یوه ښه جوړه وګنډي.

ګاندي به اوړي کې یوازې لنګ اغوست او په ژمي کې به یې یو څادر هم له ځانه تاوکړی و.

ګاندي له هلکه مننه وکړه او زياته يې کړه، چې دی نه شي کولای چې پوره کالي واغوندي؛ ځکه چې بچي يې ډېر دي او تر څو چې د ده بچيو ټول کالي نه وي پيدا کړي، دی هم دغسې ګرځي؛ نو هلک بيا پوښتنه وکړه، چې څومره کورنۍ يې وي، ټولو ته به کالي وګنډي، مګر ګاندي وويل، چې د هندوستان ميليونونه خلک د ده کورنۍ او بچيان دي او تر څو چې د هندوستان ولس په خپته موړ او په تن پټ نه وي، دی به نه ځان موړ کړي او نه به خپل ځان پټ کړي!

دا پورتنۍ څرګندونې د عبرت لپاره ذکر شوې او اوس که موږ د خپل خلکو او واکمنو ژوند ته وګورو، چې څومره د خپلو خلکو له غمه مړه دي او يا د خپل ولس غم ورسره دی.

د امريکايانو له راتګ سره هېواد کې د امريکايي ډالرو او نړيوالو مرستو باران شو او خلکو دا فکر کاوه، چې دغه دی نن دی که سبا دی دا هېواد په رغېدو دی، مګر د څوارلسو کالو په تېرېدو لا هم هېواد کې نه يوازې دا چې امنيت را نغی؛ اقتصاد، زارعت، صنعت او نورې چارې هم د پخوا په څېر په ټپه ولاړې دي او اوس دا ديارلس کاله زموږ ډېری خوراکي، روغتيايي، ودانيز او هر ډول توکي له ګاونډيو هېوادونو را روان دي او تر اوسه زموږ ملي سوداګرو، حکومتي چارواکو او عام ولس کې دا شعور نه وو، چې موږ بايد خود کفا شو، ولې مو دا ديارلس کاله دا فکر نه درلود، چې موږ بايد د خلکو له اړتيا بې غمه شو. هر څه مو له پاکستان، ايران او نورو ګاونډيانو راتلل او اوس هم راځي.

زه د خلکو د احساساتو قدر کوم، مګر دا غيرت نه بولم. هغه ورځ مې کابل کې له يو درملتون نه «پلاستر» اخيست،ورته ويل مې، چې «stiking» شته، نو دواخانې والا اربز واړاوه، چې «نې نيست» مال دغه دی سته کنه. وای تو چرا به لهجه پاکستانې ګفتې. مال بد مې وکړل؛ خو ګرانه دا هم راته ووايه، چې دا شی د کوم هېواد دی. وای د پاکستان. مال اصلي دی که دويم لمبر؟

وای اصلي. مال نو دومره درواغ، چې دويم لمبر جعلي پاکستاني شيان هم پلورې او پاکستان سره دښمني هم کوې!

موږ له پاکستان سره دښمني کوو، مګر بيا د پاکستان جعلي درمل او نور شيان د خپلو ګټو لپاره په افغانستان کې پلورو.

برېښنا مو له تاجکستان نه ده، که سبا مو تاجکستان سره هم کومه ستونزه راځي، نو بيا به برېښنا ورپرېږدو؟

يو شمېر تعليم يافته ځوانان مې داسې هم وليدل، چې زرګونو کلدارو ته يې اور ورته کړ او پاکستان سره يې پرې کرکه وښوده.

دا نو يو احساساتي ګام دی، خو غيرت نه دی؛ ځکه چې دغه ځوانان د امريکا په ډالرو افغانۍ اخلي، په دغو افغانيو يې بيا کلدارې واخېستې او هغو ته يې اور ورته کړ.

که ولسمشر ته وګورو، يو وار له پاکستان سره دومره خوږ شو، چې ټول ولس يې اندېښمن کړ، وروسته بيا يو دم دومره بدل شو، چې د دښمنۍ او جګړې غير مستقيم اعلان يې ورته وکړ؛ دا ټولې د عقل او فکر پر ځای احساساتي پرېکړې دي او هېڅ دوام نه شي کولای.

تر څو چې زموږ د چارواکو زامن په پرديو هېوادونو کې ارام ژوند کوي، د ټيټ پوړو او منځپوړو چارواکو زامن په کابل کې خوندي ګرځي، نو موږ دا نه شو منلی، چې دغه خلک د ولس له غمه مړه دي. هغه چارواکی چې د ټلويزيون پر پردې ولس ته مصنوعي ډاډ ورکوي، د هغوی ګردو کورنۍ او بچيان له اسلام اباد نيولې تر دوبۍ، لندن، نيويارک او واشنګټن کې اوسي. کله چې د افغانستان برخليک او راتلونکی زما د چارواکي پر راتلونکي ژوند اغېز نه لري، څوک به د افغانستان غم وکړای شي؟ !

که په دغو چاودنو او بريدونو کې د چارواکو زامن وژل شوي وای، بيا به يې موږ تاسې د دوی عکس العمل ليدلی وای. ګورئ! موږ تاسې وليدل، چې د پاکستان لوی درستيز او د استخباراتو مشرانو له يوې پوځي لښتې سره کابل ته راځي او

زموږ ولسمشر ته په د پېښور د پوځي ښوونځي د بریدونو د سپارلو خبره کوي، ټول پرې غلي دي، مګر د اتیا کلن پاکستاني جنرال په مړینه بیا داسې خوښي کوي، ته به وایې، چې دوی وژلی!

جنرال حمیدګل تاسې نه دی وژلی، پر خپل مرګ مړ شوی او مرګ یوه ورځ زموږ هر یوه هرکلي ته راځي. دا هم د یادونې ده، چې حمیدګل په خپل ژوند کې څه هم کړي، د خپل وطن او ملي ګټو لپاره یې کړي. راځئ، د جوش پر ځای په هوش، له همدې حمیدګله یې زده کړو !

دا نو اوس کوم عقل، احساس او غیرت دی؟

مخکې له دې چې پاکستان سره دښمني او تحریم اعلان کړو؟

موږ داسې یو ولس یو، چې د عمل پر ځای پر عکس العمل ډېر باور لرو او عکس العمل هېڅکله دوام نه شي کولای.

که موږ دا تېر دیارلس کالو کې د کورنیو تولیداتو لپاره کار کړی وای، نو اوس به موږ دې احساساتي پرېکړې ته نه اړ کېدو. تر څو چې موږ خودکفا شوي نه یو او عملي ګامونه د خپل ملت د تلپاتې بقا لپاره نه وي اخیستي؛ دا ډول څرګندونې یوازې لنډ مهالې احساساتي څرګندونې بللی شو.

موږ باید داسې کارونه او پلانونه په کار واچوو، چې راتلونکی مو روښانه او په خپلو متو ولاړ وي، تر څو چې زموږ ناروغان د سردرد، غاښ درد، معدې او نورو لویو او وړو ناروغیو لپاره پېښور، اسلام اباد، لاهور او کراچۍ ته ځي، له پاکستاني توکیو سره زموږ تحریم هېڅ معنا نه لري.

پر ځای د دې، چې پاکستان سره دښمني اعلان کړو، راځئ د خپل ولس د ژغورنې او بقا لپاره عملي ګامونه پورته کړو، نو هم به مو ولس په خپلو پښو ودریږي او هم به د پاکستان له احتیاجه خلاص یو.

دا څینې ځوانان، چې په ټولنیزو شبکو او رسنیو کې د پاکستان پر ضد خبرې کوي، ایا دغه خلک دا جرئت لري، چې خپل هغه اسناد وسوځوي، چې له پاکستاني پوهنتونو او مدرسو یې ترلاسه کړي؟

ایا د دغو یارانو کورنۍ، دوستان، حتا په خپله پاکستان د درملنې او نورو اړتیاوو لپاره نه ځي؟

ایا ډېری دغه یاران، چې د پاکستان د غلامۍ پر ضد نارې وهي، په خپله دعوه کې درواغجن نه دي؟

ایا ځینې همدغه یاران د اسلام اباد او حیات اباد په لوړو او ښکلو ودانیو کې ژوند نه کوي؟

ایا همدغه خلک د امریکا په ګډون د شلو نورو هېوادونو د استخباراتو لپاره کار نه کوي؟

ایا د دوی دغه ډول کړنې د هغه بې چاره مهاجر او هغو اړو کسانو لپاره ستونزې نه راپورته کوي، چې د خپلو اړتیاوو او درملنې لپاره پاکستان ته ځي؟

یارانو دا ډول کړنې لنډ مهالې احساساتي پرېکړې دي. عملي کول یې ناشونې دي او زما له ټولو یارانو همدا غوښتنه ده، چې د احساساتي پرېکړو پر ځای راځئ غیرتي ګامونه پورته کړو او د خپل ولس د ښېرازه راتلونکې لپاره داسې عملي ګامونه پورته کړو، چې ولس مو راتلونکي وخت کې د پردیو له فکري، اقتصادي او سیاسي غلامۍ ازاد شي او د دې لپاره لومړی شرط دا دی، چې موږ به په خپله له پردۍ غلامۍ ازاد یو.

ملتونه په عکس العمل نه، بلکې په عمل جوړیږي؛ په احساساتو نه، بلکې په غیرت باقي پاتې کېږي.

# د حجاب په هکله

## د څو نړیوالو وتلو مېرمنو څرګندونې

لیکنه: جبیر

**۱ :کریمه عمر (امریکا)**

حجاب په حقیقت کې په خاموشۍ سره د دین دعوت دی، دا د اسلام یو ښکلي سمبول دی، د اسلام دا ډېر ښه حکم دی چې و ښځې ته وایي چې حجاب وکه، حجاب د ښځې ټول بدن ساتي د هر ډول جرایمو او جراثیمو څخه ؛ کله چې ښځه په سنګین حجاب کې وي نو نارینه بیا په دې ښځې پسي نه ګوري او توجه ئې نه ورته کیږي ؛ حجاب د مسلمانانو یو زوړ رواج نه بلکې دا فرض دی چې هره مسلمانه خور یې باید عملي کړي.

**۲ :هُدا خطاب (برطانیه)**

په اسلام کې تر ټولو لومړئ زه حجاب جذب اوکش کړمه د مسلمانانو ښځو دا جامه او برقعه دوی له نارینه وو څخه بیلي کړي دي ، چې زه ډېره ورځخه اغیزمنه سومه . په کفری نړۍ کې چې کله یوه ښځه له کوره راوځي نو ځان ښایسته او بربنډ کړي ترڅو لیدونکي را جلب او وځانته یې متوجه کړي ؛ چې دا بې حیایې د یوې ټولني لپاره یو جرم دی دا ټولنه په فساد او فتنه کې لویږي او دا بربنډتوب ددې ټولو ناخوالو ریښه ده ؛ نو ځکه کله چې ما د لومړي ځل لپاره حجاب ولیدی ډېر ژر په پوه سومه چې اسلام نه غواړي چې په یوه ټولنه کې فسادونه او جرمونه وکړل سي او اسلام ځکه ښځه پټه کړېده . دا په یقیني ډول سره درته وایم چې حجاب د الله جل جلاله یو نعمت دی ، کله چې ما اسلام قبول کړ په شپږو میاشتو کې د حجاب سره پوره عادي سومه او و خدای جل جلاله ته مې د شکر له کبله دوه رکعته لمونځ هم اداء کړی.

**۳ :ناهیده مصطفی (کاناډا)**

زما له دې څخه ډېر بد راځي چې کله زه دباندي وځمه نوهر مجرم فسادي ، ګناهکار، مردارخور ، ځوان او بوډا راته ګوري او زما حسن ویني، زه حجاب د لمانځه په شان فرض بولم او ارزښت ورته ورکوم ؛ او که یوه مسلمانه خور ووینم چې بې حجابه ګرځي راګرځي نو ډېر مي ورځخه بد کیږي ، دا ځکه چې د کاناډا په شان یوه غربي ټولنه کې ولي د یوې مسلماني خور ښکلا یوعیسایي ، مجوسي ، هندو، سک او بل غیرمسلمان او مسلمان ووینې؟! ددې مطلب به دا وي چې دا ښځه خپل ښایست په بازار کې خرڅوي. حجاب زما خواهش دی او دا زما حق دی چې زه ئې کوم.

**۴ :سبا محمد بېګ(University of Rutgers)**

زه ۱۷ کلنه ومه چې ما حجاب پیل کړ، زه یوائې په دې کفایت نه کوم چې په ظاهري ډول سره خپل ځان په حجاب کې پټ کړم، مګر دا هم پوره هوډ لرم چې په باطني ډول سره هم حجاب وکړم، او د بدو اعمالو څخه ځان ګوښه کړم چې خپل وس مي هیڅ وخت نه دی دریغولی او هري مسلماني خور ته لازمه ده چې د ظاهري حجاب څخه علاوه پر باطني حجاب باندي هم ترخپله وسه کار وکړي او دواړه حجابه اړین دی.

مخکي ما داسي فکر کاوه، چې ښځه هغه وخت ښکلي ښکاري چې کله یوه ښځه د باندي وځي او نارینه ورته وګوري اودا ورته ووایي چې واقعا ته ډېره زړه وړونکې یې ، چې دې حالت وماته هیڅ خوند نه راکاوه ، او ډېر ژر زه په دې پوه سومه چې زه خو یقینا ښکلې یمه ، او الله جل

جلاله په ښه ښه سره پیداکړې یمه نو ضرورت څه دی چې د نامحرمو خلکو د هوس په خاطر ځان سینګاره وم او ټولنه په فتنه کې اچوم؟ حال دا چې الله جل جلاله وماته حکم کوي چې دا خپل ښایست دې پټ کړه او حجاب وکه چې دا ځلا او ښکلا دې نوره ضایع نشي. (وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ. الایة(

**۵ :بُشری (برطانیه)**

د اسلام د قبلولو څخه وروسته د حجا ب سره ډېره مینه لرم ، چې د ټولني د ټولو فسادونو او ناوړو افعالو څخه په امن کې سومه ، کله چې زه اوس له کوره څخه وځم نوهیڅ اندېښنه راسره نسته چې څه به راپېښ سي ، زموږ په ټولنه کې یوه مسلمانه خور په حجاب کې ډېره ښکلې ښکاري او اوس الحمدلله دا یو فېشن (رواج) ګرځېدلی دی.

**٦ :امینه جنان (امریکا)**

د ښځې لومړی د نده دا ده چې د ماشومانو ساتنه او مراقبت وکي ، د خپل خاوند په پوره مینه سره چوپړ وکي (ځکه خاوند بیا ددې خدمت کوي) ، او بله مهمه دنده یې دا ده چې ښځه باید ضرور حجاب وکي چې دا د ښځې باطني ښکلا نوره هم زیاتوي.

**۷ :اسماء (سویډن)**

په اسلام کې د ښځو لپاره غټ رحمت دا دی چې حجاب وکي ، او مسلماني خویندي باید ددې رحمت څخه ځان بې برخې نکړي، په اسلام کې چې کله ما د حجاب په اړه روښانه عبارت ولیدی، نو ما اسلام قبول کړ. زه به تر مرګه پوري حجاب کوم او دا وصیت به کوم چې که د دنیا او اخرت ښېګڼې غواړئ نو حجاب پلي کړئ که څه هم دولت، خاوند، ټولنه او قانون درته اجازه نه درکوي زه پخپله تر نه حجاب د شهادت په جام خوشحاله یمه او دا باید د هري مسلماني خور یواځنی شعار سي .

**۸ :ثُریا (امریکا)**

حجاب د یوې مسلماني مېرمني لپاره یو ازمایښت دی ، او حجاب کومه اختلافي مسئله هم نه ده، بلکې په واضح ډول سره قرانکریم د حجاب امر کړی دی ؛ و ماته حجاب دا ګټه رسولې ده چې زه یې د چاپېریال د چټلې څخه ژغورلې یمه او دوهمه ګټه یې داده چې حجاب ددې سمبول دی چې زه مسلمانه یمه ، او دا اعلان کوم چې زه د یوه الله جل جلاله پوره احکام اوقوانین منم.

**۹ :لیلی لیسالوت وتمان (امریکا)**

د اسلام د مبارک دین د قبلولو څخه وروسته حجاب زما ډېر خوښ دی او په دې حجاب کې ټوله خلک زما ډېر احترام کوي ، هیڅوک بد نه راته وایي او نه هم په بازار یا مارکیټ کې الله جل جلاله ته دې حمد وي چې دا لوی نعمتونه (اسلام او حجاب) یې رانصیب کړل، چې ورسره زما د ژوند ټولي غوښتني هم بشپړې سوې.

**۱۰ :نانسي جوزف (فرانسه)**

زما څخه ولي څوک د حجاب کولو پوښتنه کوي؟

ما پر یوه الله عزوجل ایمان راوړی دی، د هغه احکام منم ، او د یوه الله جل جلاله امر دی چې وایي حجاب وکه اوزه یې کوم ، په دې کې د پوښتني او تشویش هیڅ سوال نسته، د مومن او مسلمان معنی داده چې د الله جل جلاله اوامر او نواهي به مني، نو حجاب زه هم د لمانځه ، روژې ، زکات او حج په شان فرض بولم ؛ په نړۍ کې ځیني په نامه مسلماني ښځې د حجاب تفسیر پخپله کوي او تاویلونه پکښې کوي ، چې زه ور باندي لعنت وایم د الله جل جلاله حکم د حجاب په اړه ډېر روښانه او واضح دی ، او د علماووهیڅ پکښې اختلاف نسته.

یوه ورځ می د یوې عیسایی ملګري سره بحث کاوه او دا یې راته وویل چې حجاب ولي کوې؟

ماورته وویل چې ستاسو په کلیساوو کې نعوذبالله ستاسو د خدای مور بي بي مریمه ولي په حجاب کې ده؟

دا چپ سوه او هیڅ یې راته ونه ویل، او ورته ومې ویل چې حجاب بي بي مریمي رضي الله عنها خوښ کړی دی نو ځکه دا زما ډېر خوښ او زما حق دی.

**۱۱ :عایشه یانګ (جاپان)**

زه او حجاب د تل لپاره سره جوړه یو ، زما هغه ډول حجاب ډېر خوښ دی چې هغه ته د چا سترګې نه ور اوړي. په حجاب کې زه په مکمل ډول سره ځان پټوم ، کله

چي زه د نورو جاپانیانو ښځو سره ګورم نو دوی راته وایي چي ته د یوه ساعت اورګاډي، د سفر او د بازار د تګ څخه وروسته راغلې او حال دا چي نه لوګی دربانديي سته ، نه ګرځ دربانديي سته ، اونه هم د سفر څه اثار دربانديي ښکاره کیږي دا ولي؟

نوزه خپل وحجاب ته لاس وروړم ، او په مسکا سره ورته ووایم چې اسلام زه ددې چټلۍ څخه ساتلې یمه.

**۱۲ :فریحه خان) د امریکا د Rockville, Maryland څخه)**

حجاب زما لپاره یوه الهي تحفه ده، دې حجاب زه نوره و الله جل جلاله ته نژدې کړې یمه، او پاته دي نه وي چې حجاب و ماته دا پیغام راکوي چي زه یوه مسلمانه یمه او د الله جل جلاله او د هغه د خوږ استاذي نبي کریم صلی الله علیه وسلم ټول آوامر او نواهي پر ځای کوم، چې دا زما لپاره افتخار دی الله الحمد.

**۱۳ :فایزه عبدالرشید (کاناډا)**

الحمدلله چي زه لومړۍ مسلمانه یم او بیا حجاب کوم ، دا د الله جل جلاله امر دی چي زما پرسر او سترګو قبول دی ؛ حجاب په یقیني ډول سره د ښځي لپاره ډېر ارزښت لري ، زما په اند حجاب د یوې ښځې پر ښو اسلامي اخلاقو، ښه عفت او عزت باندي دلالت کوي ، اودا دُعا کوم چې د اُمت مسلمه ټولي لوڼي دا حجاب په پوره میړانه سره وکي او د ځان لپاره یې ویاړ وبولي.

**۱۴ :کېترین بلاک (کاناډا)**

زه چي کله د لومړي ځل لپاره په اسلام مشرفه سوم ، نو د حجاب کول راته څه ستونزمن وو خو الحمدلله د لوی ښښتن په پوره فضل سره هرڅه راته هوسا او اوس د حجاب په کولو کي هیڅ تکلیف نلرم ، او ډېره خوښه یم که څه هم د خلکو څخه مي منفي عکس العملونه واورېدل ، زه و الله جل جلاله ته په دې شُکر آداء کوم چي په حجاب کي کوم عزت او حیاء زما په نصیب سول د حجاب د ښکلا حس هر څوک نسي کولای، او زما مینه د حجاب سره هغه مهال نوره هم زیاته سوه چي کله په ټولنه کي راته څه بد عکس العملونه ښکاره شول.

هغو خلکو چي زما څخه کرکه کول، وروسته یې راڅخه معذورت وغوښتی، چي ما هم معاف کړل اومننه مي ور څخه وکړل او اوس چي زه کوم حیثیت او ارزښت په ټولنه کي لرم هغه ډېرزړه وړونکی دی او زه ور څخه ظاهرا او روحا خوښه یم.

د حجاب په کولو سره و یوې مسلماني خور ته ډېر مسئولیتونه ور په غاړه کیږي، چي دا ډېرښکلی او هیڅ تکلیف نلري، حجاب باید پر اخلاقو، کړو وړو، ورځني کار، ټولنیز ژوند، کالو، خبرو، اعمالو او افعالو، او راشه درشه کي مهم رول ولوبوي، او اغیزې وربانديي وکړي، هره مسلمانه خور باید دا ښکاره کړي چي زه حجاب کوم او ددې موخه داده چي زه د یوه الله جل جلاله حکم منم او و یوه الله جل جلاله ته عبادت کوم ؛ حجاب د دینداري یو سمبول دی، که یوه خور په حجاب کي وي، ددې مطلب دادی چي باید دا خور خپل زړه ، دماغ ، دید ، او ږغ هم په حجاب کي وساتي تر څو اسلام په بشپړه توګه سره عملي سي.

**۱۵ :مېرمن عایشه محمد (ډنمارک)**

کله چي زه په اسلام نه وم مشرفه سوې، نو وماته دا نه جوتېدله چي دا سړی او ښځه مسلمانان دي او که نه دي؟

دا ځکه چي د مسلمانانو څهرې روښانه وي، او ځلایې له ورایه معلومېده، ځیني وخت خو مي لا داسي مسلماني مېرمني هم لیدلي دي چي زه به یې وښکلا او ځلا ته حیرانه سوم ، نو په لویدیځ غوندي کفري نړۍ کي مسلمانه ښځه باید خپله ښکلا او ځلا له نوروڅخه پټه کړي، او پرې نږدي چي د یو چا منحوسه دید وربانديي ولګیږي؛ دا زموږ حق دی، زه حجاب یمه او حجاب زه یمه.

م. عبدالروف

# د لوی اختر او قرباني

## فضائل او مسائل

**دقرباني تعریف:**

د لوی اختر په ورځو کې د الله جل جلاله دتقرب(نږدېوالي)د حاصلولو په موخه د کوم ځانګړي څاروي حلالولو ته قرباني (اضحیه) وایي.(۱)

**د قرباني مشروعیت:**

قرباني یو داسې مشروع عمل دی چې په قران، حدیث او اجماع سره ثابت دی، او پر دې باندې د ټولو علماوو اتفاق دی.(۲)

**د قرباني حکم:**

قرباني یو مالي عبادت دی او حکم یې واجب دی(۳) الله جل جلاله فرمایي (فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ) خپل رب ته لمونځ وکړه او قرباني وکړه.

ابن کثیر رحمه الله له مفسرینو صحابه کرامو، تابعینو لکه حضرت عبدالله بن عباس t، عطاء، مجاهد، عکرمه او حسن بصري رحمه الله څخه روایت کړی دی چې د ) وَانْحَرْ (کلیمې معنی قرباني ده . (٤)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي څوک چې وس ولري او قرباني نه کوي زموږ عیدګاه ته دې نه راځي.(۵)

**د قرباني حکمت او فلسفه:**

سربېره پر دې چې قرباني یو ابراهیمي یاد دی ، دا د الله جل جلاله په لار کې یو ډول سرښندنه او د الله جل جلاله د منني اداء کول هم دي. کله چې بډایان د قرباني غوښه د بېوزلو په منځ کې وېشي، نو په مسلمانانو کې د دوستۍ او ورورولۍ احساس او روحیه ژوندۍ کوي.

بډای او فقیر یو د بل تر څنګ خوښي کوي؛ چې دا خوښي په یوه ټولنه کې د سوکالۍ او نېکمرغۍ لامل ګرځي.

**د قرباني حقیقت او ارزښت:**

(عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ قَالَ قُلْتُ أَوْ قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا هَـذِهِ الْأَضَاحِيُّ قَالَ سُنَّةُ أَبِيكُمْ إِبْرَاهِيمَ قَالُوا مَا لَنَا مِنْهَا قَالَ بِكُلِّ

شَعْرَةٍ حَسَنَةٌ قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ فَالصُّوفُ قَالَ بِكُلِّ شَعْرَةٍ مِنْ الصُّوفِ حَسَنَةٌ) (٦)

حضرت زید بن ارقم وايي چې صحابه وو له پیغمبرصلی الله علیه وسلم څخه د قربانۍ د حقیقت په اړه پوښتنه وکړه پیغمبر صلی الله علیه وسلم په ځواب کې ورته وفرمایل : ) دا ستاسو د پلار حضرت ابراهیم علیه السلام سنت دی ( صحابه وو وپوښتل : ) آیا نو په دغه قربانۍ کې موږ ته هم ثواب رارسیږي؟( پیغمبر صلی الله علیه وسلم په ځواب کې ورته وفرمایل : ) هو ، د قربانۍ د حیوان د هر وېښته په بدل کې تاسو ته یوه نېکي لیکل کیږي ( صحابه وو بیا وپوښتل: )د وړیو هم دومره اجر دی؟( پیغمبرصلی الله علیه وسلم په ځواب کې ورته وفرمایل: )هو، د وړیو هم دغه حساب دی، د هر وېښته په بدل کې یوه نېکي ورکول کېږي).

**د قربانۍ فضیلت:**

عَنْ عَائِشَةَ رَضِىَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ :« مَا عَمِلَ آدَمِىٌّ مِنْ عَمَلٍ يَوْمَ النَّحْرِ أَحَبَّ إِلَى اللَّهِ مِنْ إِهْرَاقِ دَمٍ وَإِنَّهُ لَيَأْتِى يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِى فَرْثِهِ بِقُرُونِهَا وَأَشْعَارِهَا وَأَظْلاَفِهَا وَإِنَّ الدَّمَ لَيَقَعُ مِنَ اللَّهِ بِمَكَانٍ قَبْلَ أَنْ يَقَعَ فِى الأَرْضِ فَطِيبُوا بِهَا نَفْسًا » (٧)

حضرت عایشه رضي الله عنها وايي چې پیغمبرصلی الله علیه وسلم وفرمایل د قربانۍ په ورځ کې الله جل جلاله ته تر قربانۍ زیات بل کار خوښ نه وي، په دې ورځو کې دغه نېک کار تر هر بل نېک کار غوره وي، د قربانۍ ښاروی به دقیامت په ورځ د ښکرو، وېښتانو او ښنګرو سره یو ځای ژوندی راشي، او د قربانۍ په ورځ به د حلالولو په وخت چې د وینې یو څاڅکی پر مځکه لوېږي، نو ځمکې ته تر رسېدو مخکې د الله جل جلاله د خوښۍ سبب ګرځي، او هغه یې قبلوي، نو ای د الله جل جلاله بنده ګانو! په خوښۍ او د زړه په مینه قربانۍ وکړئ.

**د قربانۍ پر پرېښولو وعید:**

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ كَانَ لَهُ سَعَةٌ وَلَمْ يُضَحِّ فَلَا يَقْرَبَنَّ مُصَلَّانَا ((٨)

ژباړه: له حضرت ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمیال: څوک چې وس ولري )د نصاب څښتن وي(، خو قرباني نه کوي هغه دي زموږ عیدګاه ته نه راځي.

**د قربانۍ نصاب:**

د قربانۍ او صدقة الفطر )سرسایې( نصاب یوه ډول دی، او هغه )٤٧٩٨٧,( ګرامه سره زر او یا )٦١٢,٣٥ ( ګرامه سپین زر دي .(٩)

**د نصاب تعریف:**

نصاب د مال هغې خاصې اندازې ته ویل کېږي، چې پر هغې باندې شریعت زکات فرض کړی وي، لکه د پسونو لپاره څلوېښت )٤٠(پسونه، د سپینو زرو لپاره دوه سوه )٢٠٠( درهمه او د سرو زرو لپاره شل )٢٠( مثقاله سره زر.(١٠)

**قرباني پر چا واجبيږي؟**

قرباني پر هر هغه چا واجبيږي چې مسلمان، عاقل ، بالغ ، مقيم او د(٦١٢,٣٥)ګرامه سپینو زرو،او یا د (٨٧,٤٧٩) ګرامه سرو زرو څښتن وي . (١١)

یا په واک کې داسې څه ولري چې له اړتیا یې زیات وي، او ارزښت یې د سپینو یا سرو زرو د نصاب قیمت ته ورسیږي.

د اړتیا شیان هغه دي چې د سړي ژوند او عزت پورې تړلي وي،لکه خوراک، څښاک، کالي، د اوسېدو

ځای او داسې نور چې په اصلي اړتیاوو کې شمېرل کېږي، نو له دې امله ستر ـ ستر دېگونه، لوی فرشونه، قالينې، راډيو او تلوېزيون، له اړتيا زياتې جامې او داسې نور شيان چې د انسان د اساسي اړتیاوو په جمله کې نه راځي نو که د دغو شيانو ارزښت د نصاب قېمت پوره کولای شو نو قرباني واجب ده.(۱۲)

که څوک د نصاب څښتن وي ، د قربانۍ لپاره د کال تېرېدل شرط نه دي ، ځکه خو که څوک د اختر په دويمه ورځ هم د لمر له لوېدو څخه وړاندې دومره شتمني پيدا کړي چې ارزښت يې د قربانۍ نصاب ته رسېده نو قرباني پرې واجب ده.(۱۳)

ياده دې وي چې د نارينه وو په څېر په ښځو هم قرباني واجبه ده، چې کله د قربانۍ د نصاب په کچه سره يا سپين زر او يا هم د هغه په اندازه شتمني ولري.(١٤)

که کوم لېونی او ماشوم د نصاب څښتن وي قرباني پرې نه کيږي او د هغوی سرپرست هم نه شي کولای چې دهغوی پر ځای (د هغه له ماله) قرباني وکړي. (۱۵)

کوم کس چې مسافر وي پر هغه هم قرباني واجب نه ده . که مسافر مقيم شو، يا مقيم مسافر شو، د قربانۍ د وجوب لپاره اخر وخت معتبر دی، که مسافر د اختر په درېيمه ورځ تر لمر لوېدو مخکې مقيم شو، نو قرباني پر واجب ده. او که مقيم په اخر وخت کې مسافر شي نو بيا قرباني پر واجب نه ده.(١٦)

که څوک پر ځان نذر ومني او يا د قربانۍ په نېت څاروی واخلي نو قرباني پر واجب ده، که څه هم فقير وي.(۱۷)

کـه چـا دقربـانۍ وصـيت وکـړ او مـال يـې هـم پرېښود،نو پر وصي يا ولي يې قرباني کول واجب او ضروري ده.(۱۸)

که د يو چا مال حرام وي، لکه د رشوت يا سود او يا داسې نور، نو پر هغه باندې قرباني واجب نه ده؛ که قرباني وکړي نو قرباني يې نه صحيح کېږي، ځکه چې پر هغه باندې د ټول مال صدقه کول واجب دي. (۱۹)

که دوه يا درې وړونه ګډ ژوند کوي، نو شتمنۍ ته يې کتل کېږي، که يې شتمني دومره وه چې د هر يوه برخه نصاب ته رسېده، نو پر هر ورور جلا جلا قرباني واجب ده، او د ټولو له لورې يوه قرباني بسنه نه کوي.(۲۰)

که پلار او بالغ زامن ګډ ژوند کوي، خوراک او څښاک يې يو ځای وي، نو که زوی د پلار په شتمنۍ او کاروبار کې مستقله برخه او اختيارات ولري، نو پر زوی جلا قرباني واجبه ده او پر پلار جلا، او که مستقله برخه ونه لري او نه هم خپله د نصاب په اندازه مال ولري، نو پر زوی قرباني واجبه نه ده، يوازې د پلار قرباني بسنه کوي.(۲۱)

**د قربانۍ ورځې :**

د ذوالحجې لسمه ، يوولسمه او دولسمه د قربانۍ د حلالولو ورځې دي ، د ذوالحجې د دولسمې ورځې تر لمر لوېدلو وروسته بيا قرباني نه کيږي . خو په دې درې وو ورځو کې لومړی ورځ يعنې د ذوالحجې په لسمه قرباني کول ډېره غوره او ثواب لري . او د دې درې وو ورځو څخه پرته بله ورځ قرباني نه کېږي . (۲۲)

**د قربانۍ پر ځای صدقه او خيرات کول :**

که د چا څخه قرباني د عذر له کبله پاتې شي او يا د قربانۍ په ورځو کې ورڅخه بې پروايي وشي ، پر دغه

کس واجب ده چې د قربانۍ بیه په غریبانو وویشي . که څوک د قربانۍ په ورځو کې د قربانۍ پیسې صدقه کړي قرباني یې نه کیږي ځکه چې صدقه یو ډول عبادت ده او قرباني بل ډول عبادت ده ، د روژې پر ځای لمونځ او د لمونځ پر ځای زکات او حج نه کیږي ، نو له دې کبله د قربانۍ پر ځای صدقه نه صحیح کیږي .(۲۳)

**د قربانۍ د حلالولو وخت :**

په کومو ښارونو کې چې د جمعې او اختر لمونځ کیږي په همغه سیمو کې د اختر د لمانځه څخه وړاندې د قربانۍ حلالول جایز نه دي، خو په کومو سیمو کې چې د جمعې او اختر لمونځ نه کیږي ، د هغو سیمو اوسېدونکي کولای شي چې د سهار د لمانځه وروسته قربانۍ حلالې کړي ،(۲٤)

که د اختر په لومړۍ ورځ لمونځ د کومې ستونزې له کبله و ځنډیږي د اختر د لمانځه د وخت د تېرېدو وروسته خلک کولای شي چې خپلې قربانۍ حلالې کړي . (۲۵)

د شپې له خوا د قربانۍ حلالول روا ده خو مکروه ده.(۲٦)

**د قربانۍ د حلالولو مستحب وخت:**

د کلیوالو لپاره تر لمر راختو،او د ښاریانو لپاره د اختر تر خطبې وروسته قرباني کول مستحب دي، که چا مخکې تر دې چې امام سلام وگرځوي، قرباني وکړه نو قرباني یې صحت نه لري.(۲۷)

**د حلالولو سنت طریقه:**

(عَنْ أَنَسٍ قَالَ ضَحَّى النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- بِكَبْشَيْنِ أَمْلَحَيْنِ أَقْرَنَيْنِ ذَبَحَهُمَا بِيَدِهِ وَسَمَّى وَكَبَّرَ وَوَضَعَ رِجْلَهُ عَلَى صِفَاحِهِمَا.) (۲۸)

ژباړه: له انس رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم دوه ښکرونه لرونکي، سپینوالي او توروالي ته مایل پسونه په خپل لاسونو قرباني کړل، د حلالولو پر مهال یې (بِسْمِ اللهِ وَاللهُ اَكْبَرْ) وویل او خپله پښه یې د هغه پر غاړه اېښې وه.

ابوسعید خدري رضي الله عنه څخه روایت دی، وایي: رسول الله صلی الله علیه وسلم فاطمې رضي الله عنها ته وفرمایل: ولاړه شه له خپلې قربانۍ سره ودرېږه )او ذبح کول یې وگوره( ځکه د هغې د لومړي څاڅکي سره چې ځمکې ته رسیږي ستا ټولي تېرې گناوې بخښل کیږي، فاطمي رضي الله عنها پوښتنه وکړه ای دالله جل جلاله رسوله! د فضیلت موږ اهل بیت لپاره ځانگړی دی او که ټول مسلمانان مستحق دي، رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: دا فضیلت موږ لره هم او نورو مسلمانانو لره هم شته.(۲۹)

د قربانۍ د حلالولو سنت طریقه دا ده چې قرباني کوونکی دي قرباني په خپله حلاله کړي او که قرباني کوونکی د حلالولو په طریقه نه پوهېده نو بل چا ته دي د قربانۍ د حلالولو اجازه ورکړي خو پخپله باید د قربانۍ د حلالولو پر مهال حاضر او ولاړ وي(۳۰) ، که یوه مېرمنه په کور کې وي او قرباني یې دباندې حلاله شي پروا نه لري . (۳۱)

**تر حلالولو مخکې اداب:**

۱- تر حلالولو مخکې څاروي ته اوبه او خواړه ورکول کیږي، او وږی ، تږی یې ساتل مکروه دي.

۲- د حلالولو ځای ته یې په ډېر سختۍ سره یې کشول مکروه دي، باید په ښه نرمۍ سره د حلالې ځای ته ورسول شي.

۳- چاړه به ښه تېره کوي په پخه چاړه يې حلالول مکروه دي.

٤- که چاړه تېره کوي نو له څاروي څخه دي پټه تېره شي.

٥- په حديث شريف کې راځي: يو شخص څاروی چپه کړی وو بيا يې چاړه تېره کوله، رسول الله صلى الله عليه وسلم چې وليد ويې ويل: )تاسو څاروی څو ځله وژنئ؟(

٦- د يوه څاروي حلالول د بل په وړاندې مکروه دي.

٧- تر حلالو دي وروسته يو څه وخت ورته وګوري چې بدن يې سوړ شي.(۳۲)

**د قربانۍ نېت:**

د قربانۍ لپاره په ژبه د نېت ويل ضروري نه دي ، خو په زړه کې به يې دا وي چې قرباني کوم نو قرباني يې صحيح ده، او د قربانۍ د حلالولو پر مهال ) بِسْمِ اللهِ اللهُ آکبر ( ويل ضروري او سنت دي .(۳۳)

**تر حلالولو مخکې دعا:**

قربانۍ حيوان بايد مخ په قبله واچول شي او بيا دغه دعا بايد وويل شي : (إِنِّي وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِيْ فَطَرَالسَّمٰوَاتِ وَالأَرْض وَ مَا انَا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ إِنَّ صَلاَتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِي لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ) (۳٤)

ژباړه: بېشکه مخ مې کړی دی د هغه چا په لورې چې ځمکې او اسمانونه يې پيدا کړي دي او زه له مشرکينو څخه نه يم ، بېشکه لمونځ ، ټول عملونه ، ژوند او مرګ مې د الله جل جلاله لپاره دي .

**تر حلالولو وروسته دعا:**

د قربانۍ د حلالولو څخه وروسته دي دغه دعا ولوستل شي :

اللّٰهُمَّ تَقَبَّلْهُ مِنِّيْ كَمَا تَقَبَّلْتَ مِنْ حَبِيْبِكَ مُحَمَّدٍ وَخَلِيْلِكَ اِبْرَاهِيْمَ عَلَيْهِمَا السَّلاَمَ (۳٥)

ژباړه: ای ربه! دغه ) قرباني ( زماڅخه قبوله کړه لکه څنګه چې دي د خپل نازولي ) پيغمبر حضرت محمد صلى الله عليه وسلم او حضرت ابراهيم عليه السلام قرباني قبول کړې وه .

**د قربانۍ څاروی:**

په شريعت کې د قربانۍ څاروي دوه ډوله دي:

۱- کوچني څاروي لکه وزه )بزه( او پسه چې د يوه کس له لورې قرباني کېدای شي.

۲- غوا، غوايي، ګامېښه، اوښه او اوښ چې د اوو کسانو له لورې قرباني کېدای شي.(۳٦)

او له دې پرته په نورو حيواناتو لکه وحشي څاروي ، چرګ يا چرګه قرباني نه کيږي .

**د قربانۍ د څاروي عمر:**

غوا او ګامېښه بايد دووه کلنه وي.

اوښه او اوښ بايد پنځه کلن وي.

وزه او پسه بايد يوکلن وي.

که د پورتنيو حيواناتو عمر له خپلې اندازې کم وي قرباني کول يې روا نه دي(۳۷) .

که مرغومی له يو کال څخه کم وي نه قرباني کيږي، خو که وری يا ورۍ دومره تياره شوې وي چې په ونه او وزن کې له يو کلن سره برابره وي بيا قرباني کېدای شي(۳۸) .

که څوک د قربانۍ لپاره څاروی اخلي، دقربانۍ پلورنکی ووايي چې د دغه څاروي عمر پوره دی، او څاروی هم د څېرې څخه په عمر پوره ښکارېده، د پلورونکي په خوله يقين کول روا دي.

مرکه کوونکی: حبیب مجاهد

# د هلمند د وروستیو فتوحاتو له یوه عیني شاهد سره مرکه







## په هلمند کې د مجاهدینو هماهنګي،ښه نظامي وړتیا، دپرمختللو نظامي وسایلو شتون او دولس همکاري ډیر هیله بښونکي وو

**پوښتنه:** له هرڅه وړاندې که زموږ لوستونکو ته ځان ورمعرفي کړئ؟

**ځواب :** زما نوم زبیر مسافر د افغانستان د اسلامي امارت د فرهنګي کمیسیون په چوکاټ کې دالاماره ویب پاڼې دهمکار په توګه په خدمت بوخت یم.

**پوښتنه :** تاسو په دې وروستیو کې د هلمند ولایت مختلفو سیمو ته کاري سفر درلود، که دا راته وویاست چې ددې سفر په لړ کې تاسو د هلمند کومو سیمو ته سفرونه وکړل؟

**ځواب:** موږ د فرهنګي کمیسیون د مشرتابه په مستقیمه لارښوونه او فرموده دهلمند ولایت ته سفر وکړ، په دې سفر کې د الاماره ویب بل همکار اسد بری هم راسره مل وو چې ددې اوږده مزله او هلته دکار ي فعالیت د پیچلتیا بوج یې له ماسره نیمی کړی وو.

موږ د هلمند ولایت تقریبا ټولو مفتوحه ولسوالیو او پراخو ازادو شویوسیمو ( دیشو،مارجه، باباجي، نوزاد، موسی کلا، کجکی،زمینداور، بغنی، ګریشک،سنګین او نهرسراج) ته ولاړو او د اکثرو سیمو وضعیت مو له نژدې ولید او هلته مو له مجاهدینو او د سیمو له عامو خلګو سره ولیدل او په یادو ولسوالیو کې مو له روان وضعیت نه ځان خبر کړ.

**پوښتنه :** د هلمند په شمالي ولسوالیو کې په تیرو څو اونیو کې د مجاهدینو ستر فتوحات ترلاسه کړل که تاسو ددې فتوحاتو او هلته د مجاهدینو د وروستیو لاسته راوړنو په اړه معلومات راکړئ ؟

**ځواب :** دهلمند ولایت شمالي ولسوالۍ چې خورا زیاتې پراخې سیمې دي د مساحت او موقعیت له اړخه ډیرې مهمې ولسوالۍ دي، د کابل اداري امنیتي چارواکو هم تل کوشش کړی چې د هلمند په شمال کې خپل فعال حضور ثابت کړي،مجاهدین هم په دې نظر وو چې د یادو سیمو له نیولو وروسته په اسانۍ کولای شي چې همجوارو ولسوالیو ته ګوابښ جوړ کړي، له همدې امله د افغانستان د اسلامي امارت د هلمند ولایت نظامي مسولینو هوډ وکړ چې دا ستراتیژیکي سیمې ددښمن له وجود څخه په یومخیز شکل پاکې کړي، د باغران او بغني ولسوالۍ او د زمینداور پراخې سیمې چې لا پخوا مجاهدینو فتح کړې وې، د نوزاد او موسي کلا ولسوالیو د نیولو لپاره یې پراخ تعرضي عملیات پیل کړل،مجاهدینو لومړی د نوزاد ولسوالۍ په شاوخوا کې پر پرتو نظامي

قرار گـاوو او امنيتـي پوسـتو تهـاجمي حملـې تـرسره کړې،مجاهدينو د څو ورځو مسلسلو بريدونو په نتيجـه کې د ولسوالۍ په څلورو خواوو کې پرتې قرارگاوې ،ولی محمد خان کاريز قرارگاه، فضل مهدي قرارگاه،دڅکيـانو غونـډۍ اووه پوسـتې،د سرکـانو ماموريت،دشـغزو ماموريت او يوشمير نورې پوستې يو په بل پسې ونيولې او دښمن يې د ولسوالۍ په مرکز او بازار کـې محـاصره کړ.مجاهدينو له څو ورځې لنډې دمې وروسته دولسوالۍ د مرکز نيولو په موخه دوه ورځني عمليات پيل کړل چـې په نتيجه کې يې د ولسوالۍ جنوب ته دخوجمال غونډۍ حاکمه پوسته ، د پي ارټي مرکز او د ولسوالۍ مرکـز پـه بشپړ ډول فتح کړل، په دې مسلسلو بريدونو کې ددښمن ته د سر او مال درانه زيانونه واوښتل، يوازې د ولسوالۍ د مرکز د فتحې په عملياتو کې ددښمن دعسکرو ۳۸ مړي د جګړې په ډګر کې پاته شول چـې مجاهـدينو د بشرـي خواخوږۍ لمخې دسرې مياشتې د مرسـتندويه اداري لـه لارې خپلـو کورنيـو تـه وسـپارل. د نـوزاد ولسـوالۍ د ولسوال مولوي نوري صاحب د معلومـاتو لمخـې پـه دې جګړه کې ۱۰۰ ميله سپکې او درنې وسلې، تر ۵۰ پورې پوځي وسايط شوبلې،رينجر لوي كاماز موټر او په زياته اندازه د سپکو او درنـو وسـلومهمات د خـوراکي توکـو زيرمې مجاهدينو ته غنيمت په لاس ورغلل. مولوي نوري صاحب موږ ته وويل چې د نوزاد په فتح کې دومره زيات مهمات په لاس ورغلي چې څو مياشـتې لـه دښـمن سره مقابله پرې کولای شي.

د نوزاد له فتحې وروسته دښمن بيرته د ولسوالۍ د نيولو ناکامه هڅه وکړه، د ې عملياتو ته د کندهار امنيـه قومندان عبدالرازق او د هلمند قومندان نبی جان ملاخيـل له خپل ټول قوت سره د نوزاد مربوطاتو ته له ګڼ شـمير شوبلو سره يوځای راغلل،مجاهدينوددښمن په دې قوه په يوه ړغ عمليات پيل کړل له شديد مقاومت وروسته دښمن سيمه پرېښوده د نوازاد ختيځ ته د( دانې او ګينـې ) تـر سيمې پورې يې وزغلول .بايد ووايـو د نـوزاد ولسـوالي مرکز او ټول مربوطاتو اوس مهال هـم د مجاهـدينو پـه لاس کې دي.

د نوزاد له فتحې وروسـته مجاهـدينو خپـل قـوت دموسی کلا ولسوالي ته متوجه کړ،د نوزاد په څير يې په موسی کلا کې هم مجاهدينو لومړی د ولسـوالي دفـاعي پوسـتې او پـوځي قرارګـاوې د خپلـو بريـدونو هـدف وګرځولې. د ديه كاريز قرارگاه چې د ولسوالۍ تر فتحې لس ورځې مخکې دښمن تخليه کړه، دحبيب قرارگاه چـې تر سلو زيات داردو عسکر پکې ځاي پر ځای وو، د مـلا مير تعمير قرارگاه، د حاجي محمدلال تعميرقرارگاه او يو شمير نورې امنيتي پوستې چـې پـه موسـی کـلا کـې د ځواک او قوت له اړخه تـر ټولـو مهـم او محکـم پـوځي مرکزونه وو مجاهدينو يو په بل پسې د شديدو عملياتو په ترڅ کې ونيول،مجاهدينو چې د ولسوالي له ټولـو خـواو ددښمن له ګوزاره ځان خوندی کړ له هغه وروسته يـې د ولسوالۍ په مرکز تهاجمي او ډليز بريد ترسره کړ د الله په نصرت يې د ولسوالي مرکز او ټول مربوطات فتح کړل. د موسی کلا ولسوالۍ په فتح کې هم دښمن درونـد زيـان وليد، په ټولو لس ورځنيو عمليـاتو کـې تـر ۲۵۰ پـوري ددښمن عسکر ووژل شول، چې په ۲۰۰ تنـو يـې خپلـه دښمن اعتراف وکړ او د مخابرې له لارې يې خپل مرکز ته ليکلي معلومات ورکړل، ددښمن دمخابروي تماس ړغونه

به تاسو هم اوريدلي وي ،مجاهدينو کشف کړ ل او په الاماره ويب سايټ او ګڼو فيسبوک پاڼو باندي نشر شو.

همدا راز مجاهدينو ته ۴۵۰ ميله سپکه او درنه وسله ، ګڼ شمير شوبلې،رينجر ،پوځي وسايط او په زياته اندازه مهمات غنيمت په لاس ورغلل.

دموسی کلا ولسوالي فتح په هلمند کې د مجاهدينو تر ټو غټه لاسته راوړنه او ستره بريا وه،ځکه د ې ولسوالي د هلمند په شمال کې دزړه حيثيت درلود د هلمند له زياتوولسواليو، نوزاد،باغران، بغنی، کجکی، ګريشک او سنګين سره ګډه پوله لري.

دکابل اداري يو مهال د هلمند دويشلو پلان درلود د موسی کلا ولسوالي يې د شمالي هلمند د مرکز په توګه منتخبه کړې وه. اشغالګرو انګليسي- ځواکونو هم د موسی کلا ولسوالي د ساتلو او کنترول لپاره خپل ټول توان وکړ،درانه ځاني او مالي تلفات يې وزغمل خو د مجاهدينو د دوامدار مقاومت له امله په تيښته مجبور شول.

دموسی کلا د سقوط سترې وارخطايي ددښمن امنيتي ارګانونه په دې مجبور کړل چې د يوې ناکامې هڅې په ترسره کولو سره خپله ماته او شکست پټ کړي، نو په همدې موخه يې د اشغالګرو بهرنيو امريکايي عسکرو د چورلکو په مټ د موسی کلا ولسوالي په يوه څنډه کې يې عسکر ديسانت کړل او دبازار يوې برخې ته داخل شول، چې له کښته کيدو سره سم دستي دمجاهدينو تر کاري بريدونو لاندی راغلل او محاصره شول، د شپې له تيارې نه په استفاده دښمن د دښت طرف ته د روښن ټاور په نوم سيمې ته چې ددښمن يو شمير عسکر هلته ميشت وو پناه يووړه او قوه يې په شا وتمبول شوه. دښمن پلوه رسنيو ددښمن دا غلچکي راتګ دولسواليو د مرکز نيول اعلان کړل، خو د بيرته تېښته پر خبره يې تله تيره کړه، رييښتيني او مځکني حقايق دادي چې د موسی کلا ولسوالي اوس هم د مجاهدينو په واک کې ده په نژدې مربوطاتو کې ددښمن هيڅ تحرکات نه ترسترګو کيږي.

همدا راز د هلمند په نورو ولسواليو سنګين،ګرشک او کجکي کې هم مجاهدينو ګڼ شمير امنيتي پوستې نيولې او زيات شمير غنيمتونه يې ترلاسه کړي، موږ په يادو ولسواليو کې د مجاهدينوتر واک لاندي سيمې له نژدې وليدلې ټولې پراخې سيمې د مجاهدينو په لاس کې وي اوس مهال جګړه د يادو ولسواليو دمرکز دروازو ته رسيدلي ډير ژر ده چې د سترو فتحو او برياوو زيري واورو.

**پوښتنه:** په هلمند کې جهادي وضعيت څرنګه و، هغه کوم نقاط و چې ستاسو په اند جالب او هيله ښونکې و که که خپل د سترګو ليدلی او څو په زړه پورې خاطرې راسره شريکې کړئ؟

**ځواب :** په هلمند کې وضعيت ډير د ډاډ وړ دي، مجاهدين په ډيره عالی روحيه ددښمن په مقابل کې جهاد او مقاومت ته ادامه ورکوي،ددښمن د ځواک زور اوبه شوی، دتعرض او حملې ابتکار مجاهدينو خپل کړی، دښمن ددفاع حالت څه چې د تيښتې په حال کې قرار لري.

د هلمند ګڼې ولسوالي ديشو،باغران، بغنی، نوزاد، موسی کلا په بشپړه توګه د مجاهدينوپه واک کې دي د سنګين،ګريشک،کجکی،مارجه او يو شمير نورو ولسواليو له مرکزونو پرته نورې ټولې مربوطه پراخې سيمې د

مجاهدینو په لاس کې دي او په ازاده توګه پکې تګ راتګ کوي او په یادو ټولو مفتوحه ولسوالیو او پراخو سیمو کې د اسلامي امارت نظامي او ملکي اداري فعاله دي او دخلګو ستونزې حل کوي.

موږ په یادو ولسوالیو کې په ساعتونو ساعتونو په موټر کې مزل وکړ هیڅ چیرته مو ددښمن دتحرکاتو څرک ونه لید.ددښمن وجود یوازي د ولسوالیو د مرکزوپه شاوخوا د راګرځیدلو امنیتي بوجونو تر شامحدود دی او بس.

ستاسو دپوښتنې دوهم جز ته به راشو، موږ دهلمند ولایت په ډیرو برخو کې د مجاهدینو پوځي مرکزونو ته ورغلو ، د دښمن په مقابل کې له موجودو کمربندونو او د جګړې له لومړیو کرښو مو لیدنه وکړه، په دغو ټولو ځایونو کې مجاهدین ډیر ځواکمن او له پوره مورال څخه برخمن ښکاریدل. وروستیو فتوحاتو مجاهدینو ته دومره روحیه وربخښلې وه چې ددښمن په پاته مرکزونو یې دعملیاتو دپیل لپاره شیبې په تلوار شمارلې.

په هلمند کې څو شیان ماته ډیرجالب او هیله بخښونکي ښکاریدل او دمجاهدینو د بې ساري پرمختګ او لاسته راوړنو سبب هم همدا بولم.

**لومړی**، د مجاهدینو تر منځ همږغي ډیره زیاته وه هرچیرته چې به ددښمن فشار زیات شو د بلې ولسوالۍ په مجاهدینو به ږغ وشو په لږ وخت کې به یې له خپلو ټولو شته امکاناتو سره تر هدفه ځان رساوه،او په دې کار کې ستر رول د نویو ایجاد شویو نظامي قطعاتو وو چې دټولو ولسوالیو د مجاهدینو له تشکیل نه جوړې شوې وې.

دنوزادپه ولسوالي کې موږ د هلمند له والي صاحب حاجي ملا عبدالمنان اخند سره د ځینو موضوعاتو په اړه مرکه کوله هغه مهال له نوموړي سره یوه قطعه ورسره وو چې تعداد به یې ۳۰۰ ته رسیده، نوموړي وویل چې په دې قطعه کې دموسی کلا،نادعلی،مارجې، سنګین، ګریشک او داسي نورو سیمو مجاهدین موجود دی دا ټول دنوزاد ولسوالي د عملیاتو لپاره راغلي وو.

**دوهم**، ددښمن د ځواکونو ترمنځ نه هماهنګي، د مجاهدینو د کامیابي لوي سبب وو،په هره سیمه کې چې به ددښمن عسکر تر برید لاندي راتلل دبلې سیمې عسکر یې مرستې ته نه ورتلل، یوه ولسوالي بلې ته څه چې د یوې پوستې عسکر دبلې نژدې پوستې مرستې ته نه ورتلل. ددښمن عسکر په داسي یوه فکر وو چې دجګړې په ډګر کې هیڅ حمایوي ځواک ترشا نلري، تاسو به له راډیوګانو اوري چې مکمله ولسوالي محاصره وي چارواکې یې له مرکز نه د کومک غوښتنه کوي او ناري سورې وهي، که تازه دمه ځواک ور ونه رسیږي ولسوالي سقوط کوي، له دې بد حالت سره سره بیا هم له مرکزه د مرستې لپاره څوک لاس نه ورغزوي،دې نه همږغۍ دعسکرو روحیات له منځه وړي وو.

**دریم**، د ولس بې ساري او هر اړخیزه مرسته وه چې مجاهدینو ته یې فوق العاده قوت بخښلی وو، د ولس خلګو په سختي او سهولت کې مجاهدینو ته خپله غیږ پرانیستې وه ، په عملیاتو کې له ګډون نه نیولې تر اعاشې اباتې د زخمیانو تداوي او تر خوندي ځایه رسولو په هره برخه کې د اولس خلګو د مجاهدینوملا ترلې وه. داشغالګرو ځواکونو له هر ډول سختو بمبارونو او چاپو سره سره بیا هم اولس د مجاهدینو څنګ نه وو پریې

ایښی، د نارینه وو ترځنګ ښځو هم په ځینو مواردو کې د مجاهدینوپـه عملیـاتو کـې برخـه اخیسـته،د هلمـند دنظامي کمیسیون مسول موږ ته خپله یوه خاطره داسي بیان کړه،وایي د ګریشک پـه ولسـوالي کـې مجاهـدینو دامریکایانو ټانګونو ته ریموټي ماینونه پټ کړل،څرنګـه چې ددښمن پیاده عسکرو ټوله سیمه نیـولې وه د مـاین انفجار کولو ته دمجاهد انتظـار خطـر او مشـکل وو،د یوه نژدې کور ښځې د مجاهدینو دا حالت لیده ورږغ یې کړل ، مجاهده وروره د ریموټ تار زموږ کورته راواړوي تاسو خلاص یاست چې هرکله ټانګ راشي زه به بټن پـر ووهم،همداسي وشول دهغې تورسرې مجاهدې په مـټ د امریکایي ځواکونو غټ ټانګ ټوټه ټوټه شوو او د عسکرو د چاپې مخه ونیول شوه.

ماته داولس له لـوري دا سي همکـاري ډېـره هیلـه بښونکې وه.

جالبه دا وه چې د هلمند اولسي خلګ د جهادپـه لار کې له مرګه نه ډاریدل د شهادت مرګ ته تر هرڅه زیـات هوسیدل، د یوې ټولنې خلګ چې دجهاد او شـهادت سره د مینې په روحیه روزل شوي وي هلته ددښـمن بـري او دایمي اوسیدل ناشونی دی.

موږ د ګریشک ولسـوالي د حیـدر ابـاد سـیمې تـه ولاړو،مازدیګر مهـال وو زمـوږ د لارې ملګـري حـاجي احمدسعیدوویل چې دلته به لمونځ وکړو بیا بـه پـر مـخ ځو،دیـوه شـناخته کلیـوال کـور تـه یـې مـوټر ور وګرځاوه،چې له لمانځه فارغ شولو د کور خاونـد حـاجي عبدالاحـد راغـی پـه مهمانخانـه کـې ورسر لـږ ګـړی کښېنستلو،وروسته مو ورته وویل چې زموږ تلوار دی پر مخ ځو چې کله موږ راولاړ شو حاجي عبدالاحد وویل مـا



خو داسی فکر کاوه تاسو زموږ کره د فاتحې لپاره راغلي یاست حاجي احمد سعید ورته وویل د چشي فاتحه مـوږ خو له کومې نوې خبرې نه یو خبر شوي. نوموړي وویل د نوزاد په جګړه کې زما ځوان وراره شهید شـو نـن یـې دریمه ده. بیرته کښېنستلو او دعا مو ورته وکړه، د کـور په خاوند د غم هیڅ اثار نه ښکاریدل او په خندا یې وویل زه نن ډېر خوشحال یم او د الله شکر ادا کوم چـې زمـوږ کور د شهیدانو خاوند شو، نوموړي وویل خفه په دې یم چې لما سره بې نوبتي وشوه دا ځل د شـهادت وار زمـا د زوي وو هغه سنګر ته تللی وو خـو وار تـرې زمـا وراره مخکې کړ.

د هلمند د والي مرستیال ملا محمد داود مزمل راتـه کیسه کوله،چې یوه شپه امریکایانو په موږ چاپه ووهلـه ټوله سیمه یې محاصره کړه،موږ له خپل مرکز نه په شـپه کې ووتلو، زه د اوبو یوې ویالې ته ولویدم بیا د باغو پـه منځ کې مي یوه کور ته لار پیدا کړه ور دننه شوم دسرای په انګړ کې ودریدم کرار ږغ مي وکړ څوک شـته ! دکـور خاوند راووت چې څـوک یـې مـا ویـل طالـب یـم او د امریکایانو چاپه ده،دکور خاوند راغی تر لاس یې ونیـولم وایي راځه، خپلې دکور کوټې ته یې بوتلم او په هغه ځای کې یې پرې ایستلم چې خپله بستره یې وه،ما ورته وویل چې کالي مي په اوبو لانده ده که کالي راکړې،چـراغ یـې

ولګاوه کور والا او ماشومان يې هم په خونه کې موجود دي ما ورته وويل چې چراغ ګل کړه که کومه بله خونه لري ماهلته بوزي د کور خاوند وويل چې دوځ هم ستا خوندي او لوښي دي.وروسته يې زه خوندي ځاي ته بوتلم تر څو چاپه پايته ورسيده.

**پوښتنه :** په دې وروستيو کې د اسلامي امارت په سطحه څو لوی حوادث پيښ شول و عاليقدر اميرالمؤمنين مرحوم ملا محمد عمر مجاهد د وفات اعلان وشو او د اسلامي امارت لپاره نوی زعيم وټاکل شو،ددې حوادثو په اړه په هلمند کې د سنګر د مجاهدينو غبرګون څه و؟ آيا ددوی په مورال يي کوم بد اغيز درلود؟

**ځواب :** ستاسو دا پوښتنه ما د نوزاد ولسوالي د فتحې په ورځ له عملياتو وروسته د ولسوالۍ په مقر کې په داسي حال کې چې ګڼ شمير مجاهدين موجود وو د ولسوالي له مسول نوري صاحب او د نظامي قطعې له مسول ملا مشر اخند نه وکړه،چې تاسو خو خبر یاست چې د اسلامي امارت زعيم ملا محمد عمر مجاهد وفات شوی دی ، دې المناک خبر خو به ستاسو د مجاهدينو په روحياتو منفي اغيز نه وي کړی، ددوي ځواب داوو چې تاسو نن خپله دجګړې د عملياتو شاهدان واست،زموږ مجاهدينو څومره شديده جګړه وکړه دادي د جګړې په ډګر کې ددښمن د عسکرو جسدونه پاته دي،که يې منفي اثر لرلای نو بيا به نن په دومره علي روحيه د فتحې په اميد نه جنګيدل.

د هلمند والی صاحب چې خپله په نوزاد کې موجود وو، زموږ ديوې پوښتنې په ځواب کې وويل، دلته ټول مجاهدين د مرحوم اميرالمومنين په وفات غمجن او خفه دی،خو ټول په دې عقيده هم دي چې اميرالمومنين هم د خدای يو بنده دی ،یوه ورځ نه يوه ورځ به وفات کيدی، موږ په دې خوشحال يو چې زموږ امير داسی د غيرت او شهامت نه ډک ژوند راتير کړ چې وياړمنې کارنامي او فعاليتونه به يې زموږ د ژوند تګ لاره وي، په ژوند کې هم زموږ فخر وو او پس له مرګه يې راپاته کارنامي هم زموږ وياړ دي.

ددې ستر تحول له امله د مجاهدينو په منځ کې هيڅ منفي تاثيرات نه تر سترګو کيدل.

**پوښتنه :** د اسلامي امارت د نوي زعامت په اړه د جهاد د ډګر مجاهدينو څه نظر درلود او دغه تحول يی څرنګه استقبال کړ ؟

**ځواب :** بايد ووايو چې په هلمند کې ټول مجاهدين له وضعيت نه مطمين وو، ټولو د خپل والي صاحب په لاس له نوي امير المومنين ملا اختر محمد منصور حفظه الله سره بيعت کړی وو. هر ځای مجاهدينو د نوي زعامت په اړه دا خبره کوله چې نوي اميرالمومنين د علماء کرامو لخوا ټاکل شوی عام اکثريت پرې اتفاق کړی او بل مرحوم اميرالمومنين په خپل ژوند کې خپل نائب ټاکلی وو او اعتماد يې پرې کړی وو همدا زموږ لپاره کافي ده.

د مجاهدينو قومندانانو به هر ځاي په خپلو خبرو کې دا ويل چې موږ به دښمن ته موقع ورنکړو چې زموږ د بې اتفاقۍ کوشش وکړي موږ به په عمل کې اطاعت وښه يو او په دښمن به خپلو حملو ته زور ورکړو. د مجاهدينو د استقابل ترڅنګ د اولس عامو خلګو هم د لويو لويو غونډو په جوړولو سره له نوي امير سره خپل حمايت اعلان کړ.

**پوښتنه :** دښمن ادعا لرله چې د هلمند په شمال کې يي مجاهدينو ته درانه تلفات رسولي دغه راز دښمن دا

هم وايي چې دمجاهدينو په صفوفو کې تفرق او اختلاف راغلی تاسو چې هلته د عملي ډګر شاهدان وئ او ددښمن راډيويي تبليغات مو هم اوريدل د ددښمن تبليغاتو له واقعي وضعيت سره څومره تطابق درلود ؟

**ځواب :** ددښمن دا ادعا چې مجاهدينو ته يې زيات تلفات اړولي بې ځايه او دروغ ده ، د نوزاد ولسوالي عمليات موږ له نژدې وليدل،ددښمن له مرګ ژوبلې او د مجاهدينو له ځاني زيان له ټول حقيقت نه خبر وو، خو چې له عملياتو وروسته مو د راډيوګانو بې ځايه تبليغات واوريدل موږ ته بيخي زيات حيرانوونکي وو له ريښتينو مځکنيو واقعيتونو سره يې هيڅ اړخ نه لګاوه. د نوزاد د مرکز د فتحې په عملياتو کې ټول ۱۳ تنه شهيدان او ټپيان شول رسنيو هغه مهال تر سلو زيات د مجاهدينو د شهادت خبر خپور کړ. دښمن د خپلو عسکرو مرګ ژوبله بيخي منله نه، خو د جګړې په ډګر کې زموږ مخې ته ددښمن د ۳۸ تنو جسدونه پراته وو.

همدا راز د موسی کلا په عملياتو کې بيخي د ګوتو په شمار مجاهدين شهيدان شول، او دعملياتو تر پيل دوې ورځې مخکې د خټکي بازار سيمه کې په يوه عامه تجمع ځای باندې بې پيلوټه الوتکې بريد وکړ چې يو شمير اولسی خلګ يې شهيدان کړل ددښمن رسنيو اولسي خلګ مسلح مجاهدين وشمارل.

**پوښتنه:** د مجاهدينو د نظامي پوتانشيل يا بالقوه ځواک په اړه که معلومات راکړئ بالفعله خو موږ وليدل چې مجاهدينو سږ کال په مختلفو سيمو کې ولسوالی ونيولې آيا په بالقوه توګه دا توان لري چې دا بهير جاري وساتي او د فتحو لمن پراخه کړي ؟

**ځواب:** په هلمند کې د پښوا په نسبت د مجاهدينو هماهنګي ،ښه نظامي روزنيا،دپرمختللو نظامي وسايلوشتون او د ولس همکاري ډير هيله بښونکي وو، دې هرڅه نه دا تمه کيده چې د مجاهدينو د فتحو لړۍ او د سيمو کنترول به جاري وي.

د مجاهدينو عملياتو له پښوا نه اوس ډير فرق درلود اوس ددښمن په مرکزونو او پوځي کاروانونو باندې يوازې غلچکي د خرپ او ترپ حملې نه ترسره کيدلې اوس د دسيمو د فتحې او د بيا وروسته د ساتنې او هلته د مکملې ادارې د فعاليدو په موخه عمليات ترسره کيدل. په هره سيمه کې چې به مجاهدينو عمليات کول لومړی يې د هغې سيمې په ټولو مربوطاتو او شاوخوا کې خپلې پښې ټينګولې وروسته يې د مرکزي نقطې د ازادولو تابيا نيوله.

دا مهال مجاهدين په ډيرو پرمختللو وسايلو سمبال وو،ددښمن ټول عصري وسايل د مجاهدينو په لاس کې وو،امريکايي کرمولي رسانښه ويشتونکي ټوپکونه، زغروالې شوبلې، رينجر موټر او د لري واټن ويشتونکي توپونه ښه پريمانه د مجاهدينو په واک کې وو او د سپکو او درنو وسلو د مهماتو ذخاير يې په غنيمتونو نيولي وو.

دا ټول هغه اسباب دي چې په هلمند کې دمجاهدينو د ځواک د بقا او د فتوحاتو د لړۍ جاري ساتلو اميدونه ژوندي ساتي.

ــ ډيره مننه محترم زبير مسافر صاحب ! ډير په زړه پورې معلومات او توضيحات مو راسره شريک کړل الله تعالی دې ستاسو خدمتونه قبول کړي.

ــ له تاسو هم يو جهان مننه.

پای

انجنیر احرار

# مشران څومره دروغجن دي!

د یو میلیون کارونو پیدا کول، د نهم ټولګي فارغینو ته په ښه معاش دنده ایجادول، د افغانانو دسترخانونو ته ډوډۍ راوړل، افغانستان د ترانزیت په دهلیز بدلول، دغه او هغه ولایت په سوداګریز مرکز بدلول، د فساد او رشوت له منځه وړل او داسې نور هغه شعارونه دي چې د ډیموکراسۍ په زانګو(امریکا) کې د تربیه شوي او روزل شوي افغان ولسمشر اشرف غني د خلکو د رایې اخیستنې او اعتبار په موخه په هر ټاکنیز کمپاین اومجلسونو کې ورکول. خو ولسمشرۍ څوکۍ ته له رسېدنې وروسته هېڅا هم کوم عملي ګام ونه لیده. بلکې هر څه د دې سرچپه شول؛ نه یې خلکو ته کار ورکړ، بلکې هره ورځ د خلکو د بیکارۍ کچه زیاتېږي، نه یې د خلکو د یوې مړۍ ډوډۍ ستونزه حل کړه، بلکې ۳۶ سلنه خلک چې د افغانستان د ټول نفوس چې ۳۰میلیونه دی تقریبا له لسو میلیونو اوړي تر فقر لاندې ژوند کوي، په داسې حال کې زیاتره افغانان خپل ژوند له کرهڼېزو ځمکو او محلي سوداګریو تامینوي او ډېر کم شمېر افغانان دولتي دندو او کارو بار ته اړتیا لري. نه یې فساد له منځه وړ دی، بلکې د عامه افکارو د غولولو لپاره یې ځینې ټیټ پوړي دولتي مامورین او کارمندان چې اصلي او سیستماتیک مفسدین نه و څارنوالۍ ته وړپیژندل شوي او بس.

همدارنګه افغان ولسمشر په خپلو ټاکنیزو کمپاینونو کې دعوه کوله چې د دې لپاره چې افغانستان په خپلو پښو ودرېږي او د پرمختګ په لوري خپل قدمونو واخلي، نو د هرې برخې لپاره لکه اقتصاد، ښوونه او روزنه، امنیت او سولې لپاره یې هر اړخیز پلانونه جوړ کړي دي، خو د وخت په تېرېدو سره یې هېچا هم دا پلان و نه لیده، بلکې د ټاکل شوو وزیرانو څخه یې پلان وغوښت او د همغه د پلي کولو سپارښتنه یې ورته وکړه.

په داسې حال کې چې افغانانو هېره کړې وه او د اشرف غني او عبدالله تېرو دندو ته یې و نه کتل په داسې حال کې چې دا دواړه ډیموکرات مشران په تیرو کلونو کې د افغان دولت په مهمو او اساسي پوستونو کارونه کړي دي او د هر یوه دنده له فساد او بې کاره مدیریت څخه ډکه وې. اشرف غني د بهرنیو مرستو د انسجام مشر و په داسې حال کې چې په همدې برخه کې فساد ځالې جوړې کړې وې او همدارنګه بل مهم ماموریت یې له بهرنیو ځواکونو څخه افغان ځواکونو ته د امنیتي مسوولیتونو لېږد و، چې د کار پوهانو له نظره د اشرف غني دا ماموریت هم ناکام ماموریت و.

عبدالله هم په تېرو دورو کې د بهرنیو چارو وزیر و چې په وزارت کې یې فساد او ګډوډي تر بل هر وزارت کمه نه وه او کومه مهمه لاسته راوړنه یې هم نه درلوده یوازې یو شي درلودل او هغه د خپل ماموریت په وخت کې بهرنیو ځواکونو ته د افغانانو د وژلو اجازه ورکول و، پرته له دې چې له دوی څخه د دغو وحشیانه وژنو پوښتنې اوګروېګنې وشي.

د ډيموکراسۍ يو اصل منفعت دی، خو دا منفعت کېدای شي مادي وي او يا هم غير مادي اود يوه موقف د لاسته راوړنې لپاره خلک وغول شي او په مقابل کې يې د دوی نظر او باور واخيستل شي. په افغانستان کې د وروستيو ولسمشريزو ټاکنو په ترڅ کې همدا وشول؛ د ولسمشرۍ نوماندانو دا درک کړې وه چې افغانان نوي له ډيموکراسۍ سره مخامخ شوي دي او د ډيموکراسۍ له دوکو او چلونو نه دي خبر. نو د خلکو د افکارو د خپلولو او د دوی د رايې اخيستلو لپاره يې هر ډول دروغ وويل او خلکو ته يې د دوکې ورکولو لپاره هر ډول چل ورکړ.

په داسې حال کې پر مسلمانانو واجبه ده چې تر الهي حاکميت لاندې ژوند وکړي او نظام يې شريعت وي، خو افغانانو نه يوازې دا چې کومه مادي ګټه ونه کړه او نه يې کار او نه يې ژوند ښه شو، اسلام او شريعت هم ورباندې پلی نه شو. همدا د حيرانتيا ځای دی چې ولې افغانانو دا حالت منلی دی چې د ډيموکراسۍ او ډيموکراتانو سره يې په دې ناوړه او تاواني معامله کې نه مادي ګټه وکړه او نه ورباندې اسلام پلی شو.

افغانانو په دې معامله کې يوازې خسران وکړ او بل هېڅ څه يې لاسته رانه وړل. خو اساسي خبره په شخصيتونو کې نه ده او داسې نه شو انګېرلی چې که د اوسنيو چارواکو پر ځای نور کسان وی، نو داسې به نه کېدل او هر څه به سم شوي وو. بلکې د ستونزو بنسټيز لامل په ډيموکراسۍ او ښکيلاک کې دی. له يوې خوا پر افغانانو ډيموکراسي حاکميت کوي او له بل لوري افغان مسلمانان له يوې لسيزې زيات دډيموکراسۍ د رهبرۍ (امريکا) لخوا ښکيلاک شوي دي او دافغانستان د مسلمانانو خاوره يې د خپلو شومو سيمه ييزو موخو لپاره کارولې ده او اوس يې هم کاروي او غواړي چې افغانستان د سيمې د هېوادونو د جګړې او توطيو مرکز وګرځوي.

د افغان ډيموکراتو چارواکو دنده مسلمانانو او اسلام ته خدمت او د دوی د مصلحتونو ساتنه نه ده، بلکې د هغو ماموريتونو سرته رسول دي، کوم چې د خپلو بادارانو لخوا ورته سپارل شوي دي. د دې ادعا ښه ثبوت د اشرف غني د ټولو هغو ژمنو څېړنه ده چې نوموړي د ولسمشرۍ د کمپاينونو په وخت کې له خلکو سره کړې وې. کله چې نوموړی د ولسمشرۍ څوکۍ ته ورسېد د خپلې دندې لومړی کار يې د هغه ژمنې پوره کول و چې له امله به يې افغانان د زيات وخت لپاره نه يوازې دا چې د سولې او ارامۍ ساه و نه باسي، بلکې نور به هم وژل کېږي او هغه له امريکايانو سره د امنيتي تړون لاسليک و. په خپلو ټولو ژمنو کې يوازې همدې ژمنې ته متعهد و او يوازې همدا ژمنه ورپه ياده وه، نور هر څه يې هېر و.

تر ټولو ناوړه دا چې اوس يې افغانستان د سيمې او نړۍ د استخباراتو د جګړې په مرکز بدل کړی دی. له امريکا سره د امنيتي تړون په لاسليک سره افغان ځواکونه د امريکا او ناټو په ځای نيابتي جګړه کوي. هغه جګړه چې له تيرو ديارلسو کلونو راهيسې پکې امريکايان او د ناټو سرتيري وژل کېدل اوس پکې افغانان وژل کيږي. پخوا امريکايانو جګړه په خپله په مخ بيوله او هر کال يې په سلګونه ميليونه ډالر لګښت ورکاوه او اوس يې په همغه ډول په ډېر کم لګښت د افغان ځواکونو په واسطه پرمخ بيايي.




# د طالبانو نوی بدلون

## د اټکلونو او حقايقو په رڼا کې!...

ليکوال : موسی فرهاد

اټکل داسي ؤ چې طالبان به د خپل ستر مشرامیرالمؤمنین ملامحمدعمر مجاهد له وفات نه وروسته ، نه يوازي داچې کمزوري شي ، بلکې په بيلابيلو ډلو به وويشل شي ، د تنظیمونو په څیر به پخپل منځي جگړو اخته شي.

-داسي گمان کيده چې طالبان به نور خپل هغه يووالی او وحدت چې د بنيان مرصوص په شان سره تړلي ؤ ؛ له لاسه ورکړي او په يوه خونړي تفرق کې به را ايسار شي.

--دا انگيرنه هم وه چې طالبان به نور تر هغه هدف تيريږي چې پوره ۲۲ کاله يې د هغه لپاره بې شمېره تاريخي قرباني ورکړي وي ، او د نورو تش په نوم جهادي احزابو غوندي به د امريکايي ټلوالي بندگي پيل کړي.

-ډيرو کتونکو فکر کاوه چې د طالبانو نهضت يوازي د ملامحمدعمر مجاهد له ژوند سره تړلی دی ، هغوی کومه فکري انگيزه نلري چې د خپل زعيم په نه شتون کي دي هم هغه ته وفادار پاتي شي.

-د ځينو اټکل دا وو چې د طالبانو عام جنگيالي به د خپل مشر د وفات د خبر له امله ، د جهاد روحيه له لاسه ورکړي ، بيا به يې هيڅ يو مشر ونه توانيږي چې د مجاهدينو صفونه له سره تنظيم ، او د بهرنيو اشغالگرو په وړاندي يې په پياوړي ډول رهبري کړي.

ديو شمير وگړو نظر دا ؤ چې طالبان نور په سياسي لحاظ هغسی خپلواک او مستقل نشي پاتيدلای ، لکه څنگه چې ملامحمدعمر مجاهد پخپل ژوند کې د يو خپلواک او مستقل مزاجه رهبر په توگه ځان د تاريخ په پاڼو کي ثبت کړ ، ترهرڅه تېر ، خو تر استقلال ، ملي او اسلامي نواميسو يو قدم تير نه شو.

- د کابل ناوسه اداري او د هغوی غربي ميډيا په دې هيله وه چې طالبان به دوی ته موقع ورکړي چې د ناوړه تبليغاتو له لاري په هغوی کې درزونه رامنځ ته کړي ، او په طالبانو کې د ځينو کمزورو کړيو له اجتهادي تيروتني او ناسمي پريکړې څخه به استفادې يې غوښتل چې د مجاهدينو حيثيت مجروح کړي . د دې کار لپاره يې د پراخ تبليغاتي کمپاين تابيا نيولي وه.

-ځيني کتونکي په دې اند وو چې طالبان به اوس د نورو د لاس آله وي ، په افغانستان کي به پريکړې د پرديو د فرمايشونو پر بنسټ کوي ، د ملي او اسلامي مصالحو د تحفظ پاليسي به هغوی نور تر شا پريږدي.

رښتيا خبره دا ده چې په دې اټکلونو کي د طالبانو دوښمنان تنها نه وو ، د طالبانو ځيني خواخوږي هم په دې اند وو چې کيدای شي صورتحال نور د طالبانو له کنترولـه ووزي ، دوی د دې اټکلونو لپاره څه دلايل هم درلودل ، د مخکنيو

تجربو په رڼا کي د هغوی دا اټکلونه تر یو ځایه د منلو وړ هم وو ، که سړي ځیر شي زموږ په هیواد کې یو شمېر جهادي تنظیمونه ، همدارنګه په نړۍ کي بلا نهضتونه وجود لري چې له خپله مسیره یې لاره خطا کړي وي . دوی طالبان هم له همغه لیدلوري ارزول چې داعیه او هدف یې سره بیل وي . مګر حقیقت داسی نه ؤ . دا ځکه چې د دوو لسیزو په جریان کې موږ او تاسو ولیدل چې طالبان له ډېرو سترو ازموینښتونو سره مخ شول ، هر ډول نامساعد شرایط یې وزغمل ، خو بیا یې هم په ملي او نړیواله سطحه خپل معنوي هویت ژوندی وساته.

نور به هرڅه پر خپل ځای پریږدو ، فقط دغو وروستیو بدلونونو ته به یو ځغلند نظر وکړو چې طالبانو د ستر امیر له وفات نه وروسته ، د خلکو د اټکلونو خلاف ، کوم مثبت کارونه انجام کړل:

١ - حقیقت دا دی چې د وخت او حالاتو د حساسیت په درک کولو سره د طالبانو مشرتابه په دي وتوانیدل چې په کور دننه کې د لویو اختلافاتو مخه ونیسی ، د لومړي اټکل برعکس یې خپل صف له کمزوري کیدلو وساته ، د جدا کیدلو پرځای یې د صف جنګیالي نور هم متحد او مضبوط کړل . او دا خطرونه یې د نوي زعامت په مناسب او عاجل انتخاب سره دفع کړل . که څه هم ځینی وګړي تراوسه هم ملاحظات لري ، ولي د حل لپاره یې د ذبیح الله مجاهد په خبره هڅي رواني او حل ته نژدي شوي دي

٢- دویم واقعیت دا دی چې طالبانو د تنظیمونو له ناکامه سیاستونو څخه په استفادې ، دا تجربه خپله کړې چې له امله یې لا له وړاندي د خپل منځي بیلتون او جنګ جګړو سد باب کړی . البته په دي کې د طالبانو د مشرتابه د هوښیارتیا ترڅنګ ، دویم ستر عامل یې خپله د طالبانو عقیدوي فکتور دی ، چونکه طالبان یوازي د الله تعالی په لاره کې د دین د حفاظت ، د خپل هیواد د آزادۍ او د ملي نوامیسو د ساتني د عالي هدف لپاره جنګیږي ، نو ځکه یې د قدرت غوښتني پرسر د جنګ جګړو احتمال له منځه تللی دی.

٣ - دا هم حقیقت دی چې طالبانو په اوسني تحول سره وښودله چې له خپل هدف څخه تیریدونکي څه چې د پخوا په پرتله یې وفاداري نوره هم شعوري او غښتلي شوي ده . په ٧٢ ساعتونو کې د نوي زعیم د کشالې د حل کولو ترڅنګ د هیواد له ګوټ ګوټ نه د مجاهدینو د بیعتونو سلسله په چټکۍ سره پیلول ؛ او سمدستي د دښمن په وړاندي جګړه ګرمه ساتل ، د دې ښکارندونه کوي چې هغوی څومره خپل هدف ته وفادار دي !؟ د نورو په څیر نه دي چې د پیسو او قدرت غوښتني په موخه له هرڅه نه تیر دي.

۴ - طالبانو دا حقیقت هم عملاً ثابت کړ چې ډېره عمیقه فکري انګیزه لري د کومي لپاره چې دوی بي ساري قربانۍ ورکوي او هغه فکري انګیزه یی ایماني مسئولیت او د خپلې خاوري آزادي ده ، هغوی ثابته کړه چې د مشرانو او مهمو اشخاصو د وفات ، شهادت او اسارت له کبله یې روحیه هیڅکله کمزوري کیږي نه . بلکي لا یی احساسات پیاوړي او د قربانۍ جذبه یې غښتلي کیږي.

۵ - دا چې د خلکو په ګمان طالبان نور ، د خپل متوفی أمیر رح په څیر خپلواک او مستقل نشي پاتیدلای ؛ هغوی به د نورو د ګټو لپاره وکارول شي ؛ د طالبانو نوي زعیم مولوي اخترمحمد منصور په خپله لومړۍ وینا کې په دې اړه حقیقت داسي څرګند کړ : ربښتیا خبره دا ده چې نن موږ او تاسو ته ډېر ستر امانت را له غاړي شو ، دا به ډېره ګرانه وي چې د أمیرالمؤمنین رح په څیر کردار ولرو ، مګر چونکه د هغه رح د معنوي رهبرۍ په سیوري کې مو ژوند کړی ؛ عهد به کوو چې

په هر قدم کې به پخپل ټول توان سره د امیرالمؤمنین سپیڅلي هدف او خپلواکي تګلاري ته وفادار پاتي کیږو . او په دې لاره کي به له الله تعالی نه مرسته غواړو . خپل جهاد ته به په همغه شکل جریان ورکوو ، ترڅو مو یرغلګر په مکمل ډول شړلي نه وي ، د جعلي سولي او بی مقصده خبرو اترو ته به د پردیو د غوښتنو په آساس هیڅکله اماده نشو . د مولوي منصور صاحب له پورتنیو ټکو نه پوره څرګندیږي چې طالبان به خپل مسیر همغسي تعقیب کړي لکه څنګه چې د امیرالمؤمنین تګلاره وه . هغوی به د ملي مصالحو او اسلامي اصولو څخه هیڅکله ناروا تنزل ونکړي . د خپل هدف په لاره کې به د ملامحمدعمرمجاهدرح په څیر مستقل او خپلواک پاتي شي.

٦ - بل ټکی چې خلکو یې اټکل کاوه چې ګویا بیا به هیڅ یو مشر- ونه توانیږي چې د مجاهدینو صفونه له سره تنظیم ، او د بهرنیو اشغالګرو په وړاندي یې په پیاوړي ډول رهبري کړي ؛ د دې ټکي ځواب د طالبانو ویندوی ذبیح الله مجاهد د شرق الأوسط ورځپاني د یو سوال په ځواب کې داسی کړیدی:

»دا چې جهادي صف د قربانیو او سربښندنو صف دی، دلته هره لحظه د قیادت په شمول د شهید کیدلو ، اسیر کیدلو او یا هم په طبیعي مرګ د وفات کیدلو احتمال متوقع وي، ځکه نو د جهادي صف مشرتابه مخکي تر مخکي لا د دې صف د رهبري لپاره تدابیر سنجولي وي ، جهادي صف پر نورو خصوصیاتو او مشخصاتو سربیره د قیادتونو د روزنې او تربیې هم مدرسه ده ، دلته که نن یو مشرشهید کیږي ،یا اسیر کیږي او یا هم په خپل طبیعي مرګ وفات کیږي مجاهدین د دې واقعې په راتلو نه کمزوري کیږي او نه د کمزورتیا احساس کوي ، ځکه هغوی ته لا وړاندې په فکري لحاظ دا ورتلقین شوي وي چې د جهادي لارې تداوم په شخصیاتو او افرادو پوري نه وي تړلی ، بلکې د هغې تداوم او وابستګي په افکارو او مبادئو پوري وي.

همدا لامل دی چې د امیر المؤمنین په وفات سره په مجاهدینو کې د هیڅ کمزورۍ احساس نه کیږي ، بلکې د هغه له پیل کړې لارې سره د وفادارۍ له امله لا په ډاډه او ځواکمن شکل د خارجي یرغلګرو او د هغوی د ملاتړو پرخلاف خپل جهاد ته ادامه ورکوي.
د دې ترڅنګ د اسلامي امارت نوی زعیم محترم منصور صاحب هم یو تجربه شوی او خورا بریالی مشر پاتې شوی، مرحوم امیرالمؤمنین پرې اعتماد درلود، په عملی میدان کې یې جهادي صف په سختو شرائطو کې رهبري کړی، اوس یې د ځان لپاه خورا قوي او با رسوخه، په دین پوه مرستیالان هم ټاکلي، قوي رهبري شورا چې ټول اهل خبره اشخاص او د اسلامي امارت د سر خلک په کې عضویت لري ؛ دا هم ورسره ده، نو امید لرو چې تر پخوا به د اسلامي امارت وحدت لا ډیر ټینګ وساتل شي او تر پخوا به لا ډیر په قوت کې زموږ موجودیت ثابت شي ان شاءالله.

٧ - دا هم حقیقت دی چې طالبانو په پورتنیو مثبتو کړنو سره ، د غربي رسنیو تبلیغاتي کمپاین په ډېر حکیمانه او غیر متوقع ډول سره په نطفه کې خونسا کړ . هغوی ته یې موقع ورنکړه چې د طالبانو ترمنځ د ناروا تبلیغاتو په مټ درزونه رامنځ ته کړي . برعکس د کابل اداره د پرلپسی نظامي او سیاسي شکستونو له کبله ، له غټي سرګردانۍ او ژوري پریشانۍ سره مخ شوي ښکاري.

## دعالیقدر مرحوم امیرالمؤمنین (مجاهد ځوی)

## داسلام ددښمنانو په زهرجنو تبلیغاتو دبطلان کرښه راکش کړه

هسي خو هم افغان مجاهد ولس او داسلامي امت متدينو پرګنو ، داسلامي امارت دمشرتابه په هغه رسمي اعلاميی چې دمرحوم عالیقدر امیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد (رحمه الله) درحلت اووفات داعلان په اساس خپره اونشر شوه، کوم شک اوتردد نه درلود، خو بیاهم داسلام دښمنانو اومغرضو حلقو چې داسلامي امارت په خلاف یې نورو دسیسو کار ورنکړ، نو دا زهرجن اوبې اساسه تبلیغات یې شروع کړل، چې ګواکې مرحوم عالیقدر امیرالمؤمنین په خپل طبعی مرګ نه، بلکې دچا له لوري په شهادت رسول شوی.

اوس چې دمرحوم ملاصاحب مشر ځوی ښاغلي (مولوي يعقوب مجاهد، حفظه الله) په خپل غږ دیوې مختصري ویناپه ترڅ کې دخپل والد محترم او داسلامي امارت دمؤسیس عالیقدر ملامحمدعمر مجاهد (رحمه الله) دوفات او رحلت هغه و جوهات کوم چې داسلامي امارت په رسمي اعلاميی کې کټ مټ راغلي وو په هغویې دتاییدمهرکیښود، دا په خپل ځای کې یوه لویه فتحه اوضروري ګام وو چې له یوې خوا یې داسلامي امارت دمخلص قیادت دپاک نیت بل ثبوت وړاندې کړ ، ضمناً یې دهغو حلقو اواشخاصو چې غواړي د شومو تبلیغاتوپه زریعه دمسلمانانو په منځ کې تشویشونه خپاره کړي، دهغوئ اصلي څیرې او موخي هم ښکاره وګرځولي.

محترم مولوي يعقوب مجاهد ویلي چې دملاصاحب د مړینې ناروغي لږ وخت دوام وکړ خو له مړینې مخکې یې دتې بي او تور زیړي ناروغي لرله چې همدغه ناروغي یې د وفات سبب شوه.

نوموړي زیاته کړي چې دملاصاحب په اړه د مخالفینو خبرې ټول تبلیغات دي چې غواړي د مسلمانانو ترمنځ بې اتفاقي او مشکلات رامنځته کړي.

مولوي محمد يعقوب د خپلو خبرو په پای کې ویلي چې ((مونږ تاسو ته اطمینان درکوو چې د ملامحمد عمر په مرګ کې د چا لاس نشته او دا د الله ج فیصله وه او هغه هستي چې زمونږ او ستاسو سترګې ورته په لار وې له دې نړۍ څخه ولاړه)).

دکتونکو له نظره، دمرحوم ملاصاحب دارجمند اوځلمي ځوی دغه ورستی وضاحتي ټکي اودالفاظو لب اولهجه داحقیقت او امید جوت کړ چې نوموړی دعمر په دې منک له ځومره فولادي جذبي اوراسخ عزم څخه برخمن او یو دروند شخصیت لري ،چې په ډیرو مختصرو اوقاطعو ټکوکې یې داسلام اوجهاد دښمنانو ته دا پیغام ورکړ، چې هیڅکله به دهغه متحد اوواحد صف په ماتولو او ویشلو بریالي او لاس بري نشي، دکوم صف اساس چې داسلام لوی اورښتیني خادم، مرحوم عالیقدر ملامحمدعمر مجاهد په ډیرپاک نیت او سپیڅلي خلوص ایښي، ان شاالله تعالی.

